

د پوهنې وزارت


د تعلیمي نصاب د پراختیا او د ښوونکو د
روزنې معینیت
د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو
د تألیف لوی ریاست


# د ښوونکي کتاب
# د اسلامي ښوونې او روزنې
# د تدریس لارښود

## لسم ټولگی






د اسلامي ښوونې او روزنې د تدریس لارښود - لسم ټولگی








moe.curriculum@gmail.com



د چاپ کال: ۱۳۹۵ هـ. ش.



**د پوهنې وزارت**

د تعلیمي نصاب د پراختیا او د ښوونکو

د روزنې معینیت

د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي

کتابونو د تالیف لوی ریاست

# د ښوونکي کتاب

# د اسلامي ښوونې او روزنې د تدریس لارښود

# لسم ټولګی

د چاپ کال: ۱۳۹۵ هـ. ش.

**ليکوالان**

- مؤلف مولوی عبدالوکيل د عقايدو ديپارمنت علمي او مسلکي غړی
- مؤلف مايل آقا متقی د حديث ديپارمنت علمي او مسلکي غړی.
- د مؤلف مرستيال محمد اصغر وکيلی پوپلزی د فقې ديپارټمنت علمي او مسلکي غړی.
- مؤلف ليلا ساير د اسلامي زده کړو د ديپارتمنت علمي غړې.
- مؤلف ګل آقا شائق د اسلامي زده کړو د ديپارتمنت علمي غړی.

**علمي او مسلکي ايډيټ:**

- محمد آصف کوچی

**د ژبې ايډيټ:**

- مؤلف محمد سهراب ديدار

**ديني، سياسي او فرهنګي کميټه:**

- دکتور عبدالصبور فخري
- محمد آصف کوچی

**د څارنې کميټه:**

- دکتور اسدالله محقق د تعليمي نصاب، د ښوونکو د روزنې او د ساينس مرکز معين
- دکتور شير علي ظريفي د تعليمي نصاب د پراختيا د پروژې مسؤول
- سرمؤلف عبدالظاهر ګلستاني د تعليمي نصاب د پراختيا او درسي کتابونو د تاليف لوی رئيس.

**طرح او ډيزاين:**

- حميد الله غفاري
- فيض محمد فياض

**د چاپ د سمون چارې:** محمد کبير حقمل د پوهنې وزارت د نشراتو او اطلاعاتو رئيس



## ملي سرود

دا وطن افغانستان دی — دا عزت د هر افغان دی

کور د سولې کور د تورې — هر بچی یې قهرمان دی

دا وطن د ټولو کور دی — د بلوڅو د ازبکو

د پښتون او هزاره وو — د ترکمنو د تاجکو

ورسره عرب، ګوجر دي — پامیریان، نورستانیان

براهوي دي، قزلباش دي — هم ایماق، هم پشه یان

دا هیواد به تل ځلیږي — لکه لمر پر شنه آسمان

په سینه کې د آسیا به — لکه زړه وي جاویدان

نوم د حق مودی رهبر — وایو الله اکبر وایو الله اکبر

**بسم الله الرحمن الرحیم**

**د پوهنې د وزیر پیغام**

د لوی خدایﷻ ډېر شکر دی چې انسان یې په احسن تقویم کې پیدا او هغه ته یې د خبرو کولو توان ورکړ او د علم او فکر پرګاڼه یې سمبال کړ. ډېر درود دې وي د اسلام پر ګران پیغمبر حضرت محمد مصطفیﷺ چې د انسانیت ستر ښوونکی دی او د رحمت، لارښوونې او روښنایي پیغام راوړونکی.

ښوونه او روزنه په هره ټولنه کې د بدلون او پراختیا بنسټ دی. د ښوونې او روزنې اصلي موخه د انسان د بالقوه ځواکونو فعالول او د هغه د پټو استعدادونو غوړول دي.

درسي کتاب د ښوونې او روزنې په بهیر کې یو مهم رکن بلل کیږي چې له نوو علمي بدلونونو او پرمختګونو سره اوږه په اوږه د ټولنې له اړتیاوو سره سم تالیف کیږي. درسي کتابونه باید د منځپانګې له مخې خورا بډای وي چې وکړای شي د علومو له نوو لاسته راوړنو سره مل دیني او اخلاقي زده کړې د نوو میتودونو له لارې زده کوونکو ته ولیږدوي.

دغه کتاب چې اوس ستاسو په واک کې دی، د همدغو پورته ځانګړنو پر بنسټ چمتو او تالیف شوی دی. د پوهنې وزارت تل زیار باسي چې په هیواد کې تعلیمي نصاب او درسي کتابونه د اسلامي ښوونې او روزنې او د ملي هویت د ساتلو پر بنسټ جوړ او له علمي معیارونو، نوو روزنیزو میتودونو او د نړۍ له علمي پرمختګونو سره سم چمتو کړي. د زده کوونکو استعدادونه په ټولو اخلاقي او علمي خواوو کې وغوړیږي او په هغوی کې د تفکر او نوښت توان او د پلټنې حس پیاوړی کړي. د خبرو اترو او پیرزوینې د فرهنګ دودول، د هیواد پالنې او د مینې او محبت د حس پیاوړی کول، ښښنه او پیوستون د پوهنې د وزارت نورې غوښتنې دی چې ښایي د لوست په کتابونو کې ورته پام وشي.

درسي کتابونه د ښه او مسلکي ښوونکي له درلودو پرته نشي کولای ټاکل شوي موخې ترلاسه کړي. ښوونکی د ښوونې او روزنې یو مهم جزء او د ښوونې او روزنې د پروګرامونو پلي کوونکی دی. د هیواد له ژمنو او زړه سواندو ښوونکو څخه، چې د تورتم او ناپوهۍ په وړاندې یې جګړه خپله دنده ګرځولې، دوستانه هیله لرم د تعلیمي نصاب په دقیق او مخلصانه تطبیق کې د هیواد ماشومان، نجونې او تنکي ځوانان د پوهې، اخلاقو او معنویت لوړو څوکو ته ورسوي.

د هیواد د زده کړې د نظام برۍ د خلکو له جدي مرستو پرته امکان نه لري. له دې امله له ټولو قشرونو او د ملت له شریفو خلکو، په تیره بیا له کورنیو او د زده کوونکو له درنو اولیاوو څخه هیله لرم چې د معارف د موخو د لاسته راوړو په برخه کې له هیڅ ډول مرستې څخه ډډه ونه کړي. دغه راز له ټولو لیکوالو، پوهانو، د ښوونې او روزنې له ماهرینو او د زده کوونکو له محترمو اولیاوو څخه هیله کیږي چې په خپلو رغنده نظرونو، وړاندیزونو او نیوکو د درسي کتابونو په لاښه والي کې د پوهنې له وزارت سره مرسته وکړي.

لازمه بولم له ټولو ښاغلو مؤلفانو، د پوهنې وزارت له اداري او فني کارکوونکو او له ملي او نړیوالو بنسټونو څخه، چې د دغه کتاب په چمتو کولو، چاپولو او ویش کې یې زیار ایستلی او مرسته یې کړې، مننه وکړم.

په پای کې له لوی خدایﷻ څخه غواړم چې په خپله بې پایه مهرباني له موږ سره د پوهنې د سپیڅلو ارمانونو په لاسته راوړلو کې مرسته وکړي. انه سمیع قریب مجیب.

**د پوهنې وزیر**

**دوکتور اسدالله حنیف بلخي**



# سرلیکونه

**سرلیک ........ مخ**

## له ښوونکي سره څو خبرې

**محترم ښوونکی،**

**السلام علیکم ورحمة الله و برکاته**

یوه ښوونیزه او تربیتي ټولنه د یوې پر مختللې ټولنې د ښه تشکلیل سبب ګرځي.

یوه ښه ټولنه له هغې ټولنې څخه عبارت ده چې اسلامي ارزښتونه او اخلاقي ګټې پکې مراعات شي، ځکه چې له ملي او اسلامي هویت سره د نیکو اخلاقو او هدایاتو مراعاتول ددې سبب کیږي، چې وګړي محفوظ او خوندي پاتې شي، چې دا د پوهنې وزارت یو بنسټیز او اساسي هدف دی.

**درنو ښوونکو،**

ددې لپاره چې د وطن بچیان مو له اسلامي ارزښتونو او له دیني زده کړو باخبره، له ملي، ټولنیزو او نړیوالو مصلحتونو باخبر او له اصیل اسلامي او افغاني فرهنګ سره لوی شي او په کړنو، رویه او ذهنیت یې مثبته اغېزه وکړي، نو هیله ده چې ښاغلي ښوونکي د همدې لارښود کتاب په رڼا کې چې د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تالیف د ریاست د مسلکي غړیو لخوا په پوره زحمتونو سره برابر شوی، کار واخلي.

د ښوونکي لارښود دا کتاب د لسم ټولګي د اسلامي ښوونې او روزنې مضمون لپاره ترتیب شوی او لکه څنګه چې د کتاب په پېښتې (بسم الله الرحمن الرحیم) تزیین شوې وروسته د مؤلفانو معرفي راځي او بیا د موضوعاتو فهرست راځي.

د درسونو جوړښت داسې دی چې د درس سرلیک د شمارې او مخ ۴۵ دقیقې، د درسي ساعت، د درسي فعالیتونه، په ځینو لوستونو کې د لغاتو مانا او د تدریس تګلاره او کړنلاره، د مواد معرفي، د درسي کومکي توکو او مواد معرفي او د ښوونکي نور اړونده فعالیتونه، د احوال پوښتنه، د ټولګي تنظیم، د حاضرۍ اخیستل او نور ګډ فعالیتونه چې د ښوونکي او زده کوونکو تر منځ وي، لکه: پوښتنې او جوابونه، انفرادي او ګروپي تکرار او یا هم مسابقه هغه لارې او تګارې دي، چې په اساس یې موږ د موخې لاسته راوړلو، لپاره ارزونه تر سره کوو او په اخر کې د لوست لنډیز او زده کوونکو ته د کورنۍ کار دنده ورسپارل کیږي.

د لوست په لاښه کولو کې، د لوست له سرلیک وروسته د لانورې تشریح په اړه کافي معلومات ورکړل شوي دي.

**د ښوونکي صفتونه**

تقواداره، با دیانته او نېک اخلاقه وي.

د لوړو امیدونواو هیلو خاوند وي.

په خپل نفس او ځان باور ولري.

د لوړ شخصیت څښتن او د نورو تر اغېزې لاندې نه وي.

په ځان بسیا، د لوړ مزاج او دندو د ښه تنظیم کولو وياړ ولري.

ډاډه او له ستونزو ویره ونلري.

له زده کوونکي سره د نېک سلوک او رویې درلودونکی وي.

د قوي روحیې خاوند او زیار ویستونکی وي.

له زده کړې او پوهې سره مینه ولري.

د مطالعې او پوهې لپاره خپل خالي وخت غنیمت وګڼي.

د زده کوونکو د ښوونې او روزنې لپاره هڅه وکړي او له مطالعې او مذاکرې ګټه واخلي.

په لوست ورکولو او د ژوندانه په بهیر کې له نیکو اړیکو کار واخلي.
د هغو معلوماتو د پیدا کولو په لټه کې وي، چې پرې نه پوهیږي او د نورو له نصیحتونو ګټه واخلي.
د نومورې لاسرسی باید په لوست پورې اړوند نه بلکې ټولیز وي.
له نورو سره صداقت، د خیانت په اړه بې فکره او د لوړ مقام او یا وسایلو د لاسته راوړلو لپاره رشوت ورنکړي.
د ژوند په ټولو چارو کې د زده کوونکو لپاره یوه ښه بیلګه وي.

**د یو ښه زده کوونکي صفتونه**

ښوونکي ته درناوی لري.
د پلار او مور فرمانبرداره وي.
له لوړې لیوالتیا سره ښوونکي ته غوږ نیسي.
په ټاکلي وخت خپل ټولګي ته حاضریږي.
په لومړي ګام کې خپل درسونه مطالعه کوي او بیا خپله کورنۍ دنده ترسره کوي.
په هر درسي ساعت کې د لوست مهم ټکي په خپله کتابچه کې رسوي.
د نورو درناوی کوي او د ښــو ملګرو سره یوځاي او له بدو ملګرو لیرې ګرځېدل خپله دنده بولي.
پنځه وخته لمونځ په جماعت سره کوي.
درسي او ضروري توکو ته لاسرسی ولري، لکه: قلم او کتابچه او .....
د ژوند په ټولو چارو کې د اسراف نه کول خپله دنده بولي.

**درسي پلان**

پلان په لغت کې د تدبیر، سنجش او تصمیم نیونې په مانا دی، چې د یو کـــار د ســـرته رســـولو لپـــاره پـــه لاره اچـــول کیږي او په اصطلاح کې پلان له هغې ذهني نقشې څخه عبارت دی چې د یـــو کـــار او فعالیـــت ټـــولې اړونـــده چـــارې تنظیموي.

درسي پلان له هغې ذهني نقشې څخه عبارت دی، چې د ښـــوونکي لـــه لـــوري د ټـــولګي ټـــول اړونـــد فعالیتونـــه او د زده کوونکي اړوند فعالیتونه، چې د لوست په جریان کې راځي تنظیموي.

**د درسي پلان مهمې دندې او ګټې**

ــ د پیچلي او مغلق مطلب حل کېدل او د موادو لا ښه ترتیب او تنظیم،
ــ په تدریس کې له بېلابېلو لارو او تګلارو ګټه اخیستل،
ــ د ټولګي په فعالیتونو کې زده کوونکو برخه کول،
ــ له ښوونکي سره د لوست په چارو کې مرسته کوي برخه ورکول، چې د درس لپاره مناسب توکي وټاکي،
ــ له ښوونکي سره مرسته کوي چې په ډاډه زړه لوست ورکړي او د زده کوونکو لپاره اغېزمن پریوځي،
ــ ښوونکی په تدریس کې موخې ته رسوي.

**د ښوونکي د لارښوونو د محتویات کاري چوکاټ**

**۱ــ اصطلاحات**

اصطلاحات د اصطلاح جمع د عربي ژبې یوه کلمه ده چې د صلح له ریښې اخیستل شوې او د صلحې او پخلاینې په مانا ده.

د اصطلاح نوم د فرهنګ او ډیکشنرۍ له مخې د ترمینالوژۍ (Terminology) لپاره کارول کیږي، اصطلاحات او حقایق د هر قوم، ملت، مذهب او بلاخره په ټولیزه توګه د هغو علومو څرنګوالی دی، چې د یوې مهمې او اساسي علمي حوزې، مهارتونو او د فکر او ذهنیت درلودلو په اساس یې وضع کړی وي.
د بیلګې په توګه په قرآن کریم د آیت، سوره، رکوع اصطلاحات او نور او یا لکه په دیني زده کړو کې د کلمې، لمونځ، زکات او د کعبې شریفې د حج اصطلاحات او نور.

**۲– موخې**

اهداف د هدف جمع ده په فرهنګ معین کې هدف داسې تعریف شوی دی: هر لوړ شی، لوړ ځړول شوی شی، نښه، تیر یا هر هغه شی، چې انسان یې رسېدو ته هڅه کوي او مقصد او هیله یې وي.
هدف یو درسي واحد دی چې پر اساس یې د ښوونې او روزنې د ټولیز نظام د مفرداتو موخې، د درسي مضمون موخې چې په ټولګي کې د درس ویلو، د مهارتونو د زده کولو او د ذهنیت په محتوا کې طرح کیږي.
د یو مضمون لپاره د کل او جزوي هدفونو ټاکل او د زده کوونکو په کړو وړو کې د یو درسي واحد په موخې د بدلون راوستلو لپاره او یا هم د زده کوونکو د ذهن د پراختیا لپاره په لاره اچول کیږي دا تغیرات همغه درسي پروګرامونه دي.
د موخه سرچینې او حدود له هغه طبیعت څخه عبارت دی چې زده کوونکي، ټولنه او استادان پکې راټول شوي او هغه وسایل چې په لاس کې مو دي اړتیاوو، نظر پوښتنو، څیړنې او مطالعې وروسته ټاکل کیږي.
د موخې او پروګرام ترمنځ درسي اړیکه او رابطه تردې مهمه ده، چې که موږ هدف ونلرو، نو کوم پروګرام یا برنامه هم نشو لرلای، په بل عبارت پروګرام جوړول (د درسي کتاب لپاره د ښوونیزو توکو برابرول او تهیه کول، د ښوونکي لارښـــود...) تر وخت پورې خپل علمي توب او منطقي والی ځانته ښیي چې ټاکلی هدف ولري.
په حقیقت کې د یو لوست محتوا، د لوست موخې دي چې زده کوونکي څومره پوهیږي؟ مهارتي هدفونه، چې زده کوونکي څرنګه عمل کولی شي؟ او ذهني هدفونه یا د وړاندې کولو د تګلارې هدفونه، چې زده کوونکي څنګه کولای شي د وګړو او اشخاصو په توګه پرمختګ وکړي او په ټولنیز ژوندانه کې فعاله ونډه واخلي، دا ټول هدفونه تر پوښښ لاندې راولي.

**د درسي یا ښوونیزو توکو تعریف**

درسي مواد له اشیاوو او څیزونو څخه عبارت دي چې د ښوونکو او زده کوونکو د موخو د لاسته راوړلو په لاره کې مرستندوی پریوځي او یا په بل عبارت هغه د لیدو او اوریدو وړ توکي دي چې ښوونکي د تدریس په وخت کې ترې ګټه اخلي.

**۳ـ درسي کومکي توکي**

درسي کومکي توکي له طبیعي او ساده توکو څخه عبارت دي چې په چاپیریال کې په اسانۍ پیداکیږي، لکه: د لوبیا دانې، نخود، میده تیږې او داسې نور. غیر محیطي توکي، لکه: چارت، فلش کارت، مودلونه (د ځمکې کوره، نقشه، تصویر) او داسې نور. د نوعیت او څرنګوالي له مخې درسي مرستندوي توکي په دوه ډوله ویشل کیږي: عمومي مواد، لکه: درسي کتاب، تخته، تباشیر، او داسې نور خصوصي مواد: لکه مودلونه، ګرافیکي توکي، سي ډي، فلم، پرجکتور، لابراتوارونه، تصویري او ساده کارتونه، مقوایي چارتونه، فلپ چارتونه، هندسي بکسونه، نقشه او داسې نور چې د ښوونکو او زده کوونکو له لوري د تدریس په چارو کې ورڅخه کار اخیستل کیږي.
درسي مواد زده کوونکیله میخانیکې مرحلې، څخه (لکه طوطي چې لوست په یو ځل حافظې ته سپاري) د عینیت مرحلې او عیمقې پوهې ته رسوي، د ښوونکي لارښود په کتاب کې زموږ هدف له درسي موادو څخه عمومي مواد نه دي، لکه: کتاب، زده کوونکي، تخته او تباشیر بلکې هدف مو د هغو اغیزمنتوب دی او له ټولو هغو موادو څخه عبارت دي چې له هر ډول

سرچینو څخه، چې ښوونکی یې برابروي او یا له کومې فابریکې او نورو کومو ځایونو څخه لکه: د ښوونیزې ټکنالوژۍ دفتر لخوا چې ښوونځي ته سپارل کیږي.

**۴ــ ښوونیز فعالیتونه**

د فعالیتونو له راوړلو څخه زموږ موخه د لوست په تحکیم کې د زده کوونکو د ونډې اخیستل دي. لکه د رول په سرته رسولو کې، له مخې څخه په لیکلو، متن لوستلو، مشاهدې، د ارتباط په ټینګولو طبقه بندی کولو او نورو کې چې د زده کړې په وخت کې سرته رسیږي او یا له ټولګي د ښوونځي په ډګر، سیر علمي او نورو فرهنګي او دیني غونډو کې په مجموعی، یو کسیز او ډله ییز ډول سرته رسوي. په مجموعي، انفرادي او ډله ییز شکل په شخصي او ګروپي ډول د فعالیتونو لپاره په درسي پلان کې ډېر وخت په پام کې نیول شوی: چې د زده کوونکو په ذهنونو کې لوست په اغیزمن ډول ځای ونیسي او زده کوونکي ترې یو څه زده کړي، دا چې په ټولګي یا ښوونیز چاپیریال کې هر ډول ترسره شوی مهارت، خلق شوی ذهنیت په خپلو ورځنیو چارو کې تطبیق کړي او زده کوونکي د لوست په ارزښت پوهه او په ورځني ژوندانه کې ترې ګټه واخلي او هم یې په شخصي او ټولنیز اړخ کې مثبت بدلون راولي.

**۵ــارزونه**

د لوست له مهمو رکنونو څخه یو هم د لوست پای کې همیشنۍ ارزونه ده، په منظم او سیستماتیک ډول اروزنه موږ د موخو د سرته رسیدو په برخه کې باوري کوي چې آیا پورته ذکر شوي هدفونه ترسره شوي او که د ترسره کیدو په حال کې دي او تر کومې اندازې موږ ته ددې ډاډ راکوي، چې زموږ تدریس د موخو په لور ګامونه ایښي چې په شفاهي او تحریري ازموینو او د معیاري نومرو د جدول په اساس ترسره کیږي.

**٦ ــ د لوست ارزښت**

په ورځني ژوندانه کې د درس متن ویلو، د مهارتونو(د درس د څرنګوالي کوچني او واړه مهارتونه) څومره عملي او عیني جنبه لري یانې کارول کیږي، د زده کوونکو فردي پرمختګ او ټولیزې اړیکې ترکومه بریده په کومه کچه مخ ته تللي یوه اروزنه ترسره کیږي.

محترم ښوونکي کولای شي د هر درس نتیجه او پایله د لیدلو او په زده کوونکو کې د بدلونونو په راتللو، لکه په رویه، کړو وړو، د یو زده کوونکو بل زده کوونکي سره اړیکه له مخې ارزوي او ځان ډاډه کوي.

**۷ــ کورني دنده**

زده کوونکي ډېر وخت په کور کې د کور له غړو سره تیروي، نو له دې امله د لوست موخو ته د رسیدو لپاره زده کوونکي ته کورني دنده سپارل کیږي چې په ساده او اسانه ډول یې حل کړي او زده کوونکي تشویق شي چې نوموړې کورنۍ دنده د ملګرو او د کورنۍ د غړو په مرسته ترسره کړي.

**د تدریس اصول او تګلارې**

دا یو مسلم حقیقت دی، چې انسانان هر ډول کارونه ترسره کوي، باید د کار د ترسره کولو په اصولو باندې وپوهیږي او له ترسره کولو یې مثبته نتیجه واخلي، اصول د اصل جمع ده او د اساس او بنسټ په مانا ده، په ښوونه او روزنه کې له هغه یو سلسله مقرراتو او تګلارو څخه عبارت دي، چې ښوونکي د یوې موضوع د تدریس پرمهال ترې کار اخلي او په پایله کې نوموړی ټاکلي هدف ته رسوي.

په هره اندازه، چې ښوونکی له ډېرو طریقو سره بلد وي، ځای او وخت ته په پام سره د زده کوونکو په اختیار کې د لوست محتوا او په زړه پورې مواد ورکوي او هیڅ کوم زده کوونکی د لوست په وخت کې غیر فعال نه وي او د ښوونکي تدریس ډېر په زړه پورې وي.

**تدریس:** له هغو فعالیتونو څخه عبارت دی، چې ښوونکی او زده کوونکی دواړه د تدریس موخې ته رسوي او تدریس دې اصولو ته د تدریس میتود یا طریقه هم وایي.

**د تدریس میتود او طریقه**

د یو کار د ترسره کولو لپاره د مراحلو ترسره کولو ته د هغه میتود وایي، یا د لوست هغې منظمې او باقاعده طریقې ته وایي چې ښوونکی یې له مخې نومورې لوست وړاندې کوي یا ټولو فعالیتونو ته ویل کیږي، چې ښوونکی یې په کم وخت کې ترسره کوي او په پایله کې یې مطلب زده کوونکو ته روښانه کړي دېته متیود وایي.

د تدریس اصول بېلابېل ډولونه لري: لکه لکچر، خطابه، مشق او تمرین، سوال او ځواب، ښوودنه، د سیالۍ ترسره کول، ګروپي کار، علمي څېړنه، مناقشه او مذاکره، انفرادي تګلارې، مطالعه او داسې نور. مونږ یې یوازې هغو ته اشاره کوو، چې پدې کتاب کې ترې استفاده شوې.

**د ګروپي کار طریقه**

۱– د یو ټولګي زده کوونکي په څو ګروپونو ویشل کیږي هر ګروپ په یوه موضوع چې د ښوونکي له خوا ورکول کیږي بحث کوي، په مشترک ډول پرې کار کوي او خپل نظریات او افکار سره تبادله کوي، ددې لپاره چې موضوع ېې ښه زده شي له یو بل پوښتنې کوي، بحث او مناقشه ترسره کیږي. په دې تګلاره کې ښوونکي د لارښود حیثیت لري. که کله په ګروپونو کې ستونزه راولاړه شي، پوښتنو ته یې ځواب وایي. له تجربو ثابته شوي چې د انفرادي زده کړې په پرتله ګروپي زده کړې ښې دي.

**عمده او مهم ټکي چې ښوونکی یې د ګروپي کار په ترسره کولو سره په پام کې نیسي**

۱ــ بهتره به وي که د ګروپ غړي ۳– ٦ کسان وي او په ګروپونو نومونه کیښودل شي.

۲ــ ګروپي کار او لارښوونه باید ډېر واضحه وي.

۳ــ د امکان په صورت کې د ګروپي کار لپاره زده کوونکي د دایرو په شکل برابریږي.

۴ــ د ګروپونو ترمنځ باید فاصله موجوده وي، چې ښوونکی په اسانۍ وکولای شي تګ راتګ وکړي.

۵ــ ښوونکی باید ټول زده کوونکي وڅاري او پوښتنو ته یې ځواب ووایي.

٦ــپه ګروپي کار کې زده کوونکو ته باید داسې موضوع ورکړل شي، چې د سرته رسولو قدرت او توان یې ولري.

۷ــ زده کوونکي باید په راتلونکي ګروپي کار کې بدل او را بدل شي.

۸ــ په ګروپي کار کې باید وخت وټاکل شي.

۹ــ د ګروپي کار په پای کې باید د هغو پایله اعلان شي.

**۲ــد نقش د سرته رسولو**

زده کوونکي ونډه اخلي او د نومورې ویل شوې لوست موضوع او هغه ځایونه چې د تمثیل وړ وي، باید د حقیقي صحنې په شکل تمثیل شي.

**عمده او مهم ټکي چې د نقش له سرته رسولو سره په پام کې ونیول شي**

۱ــ له دې تګلاره هغه وخت استفاده کیږي، چې خلک ورته په بده سترګه ونه ګوري.

۲هغه مواد او توکي چې د نقش د سرته رسولو په وخت کې ترې کار اخیستل کیږي باید مخکې له مخکې تیار شي.

۳ــ ښوونکی باید د زده کوونکو د نقش د سرته رسولو لپاره د تسهیل کوونکي او لارښود موقف ولري.

۴ــ ښوونکی باید د نقش د سرته رسولو په وخت کې د ټولګي کنترول په پام کې ونیسي.

۵ـ د نقش په سرته رسولو کې باید زده کوونکو ته روښانه لارښونه وشي چې کوم زده کوونکي کوم نقش، کوم کارونه او څه وخت ترسره کوي.

٦ـ د نقش په سرته رسولو کې هغه زده کوونکي باید وټاکل شي، چې د سرته رسولو توان يې ولري.

۷ـ د نقش سرته رسول باید په داسې ځای او ټولګي کې ترسره شي، چې ټول زده کوونکي يې وويني.

**۳- د پوښتنو او ځوابونو د ترتیب طریقه**

په دې طریقه کې موضوع په وړو وړو برخو ویشل کیږي او له هرې برخې يې پوښتنې برابریږي عمده او مهم ټکي، چې په دې طریقه کې په پام کې نیول کیږي په لاندې ډول دي.

۱ـ ښوونکی باید داسې پوښتنې وکړي، چې زده کوونکي يې د پوښتنې په مفهوم پوه شي یا يې درک کړی شي.

۲ـ  یو زده کوونکی هغه وخت پوښتنه کوي، چې ښوونکی باید د نوموړي پوښتنه بل زده کوونکي ته راجع کوي، چې ځواب يې پیدا شي.

۳ـ زده کوونکو ته ددې وخت ورکړل شي، چې له یو او بل څخه پوښتنې وکړي.

۴ـ ښوونکی باید د پوښتنو او ځوابونو په وخت کې له موضوع بهر نشي.

۵ـ د پوښتنو او ځوابونو په تګلاره کې باید ډېر زده کوونکي ونډه واخلي.

٦ـ هغه زده کوونکي چې تل غواړي پوښتنې ته ځواب ووايي او د نورو زده کوونکو د ځواب ویلو چانس له منځه وړي، باید کنټرول شي.

۷ـ وخت باید په پام کې ونیول شي.

۸ـ هغه زده کوونکي، چې په پوښتنو او ځوابونو کې برخه نه اخلي هغوی دې په پوښتنو او ځوابونو کې شامل شي.

۹ـ ښوونکی باید زده کوونکوته د ناسم ځواب په ویلو ګواښ ونه کړي.

۱۰ـ ښوونکی باید هغه زده کوونکی، چې سم ځواب يې ویلی، وهڅوي.

**۴ـ د مسابقې میتود**

سیالي کول د تدریس اصولو څخه یو اصل دی، په دې تګلاره کې د زده کوونکو ترمنځ مثبته سیالي رامنځ ته کیږي او یـــو شمیر زده کوونکي هڅه کوي چې د بل ګروپ له زده کوونکو څخه سیالي وګټي، په دې طریقه کې زده کوونکي ډېر فعالـــل وي او د فعالیت مرکز بلل کیږي. پدې اصولو او طریقه کې زده کوونکي په دوو ګروپونو او ډېرو ګروپونو بانـــدې ویـــشل کیږي او په هر ګروپ کې په مساوي سویه زده کوونکي وي. په دې تګلاره کې په ابتدایي او ثانوي ټولګیو کې کار اخیستل کیږي.

هغه ټکي، چې د سیالۍ په طریقه کې باید په پام کې ونیول شي، په لاندې ډول دي:

۱ـ د د سیالۍ لارښونه باید څرګنده وي.

۲ـ د سیالۍ په وخت کې باید ټولګي کنترول شي.

۳ـ د نومرو په ورکولو کې باید عدالت وشي.

۴ـ د سیالۍ پوښتنې باید له اسانه ترسخته پورې ترتیب شي او له هر ګروپه په مساوي ډول پوښتنې وشي.

۵ـ د سیالۍ په طریقه کې یو زده کوونکی له بل زده کوونکي پوښتنه کوي او که زده کوونکی پوښتنه ونشي کولای، ښوونکی باید پوښتنه وکړي.

٦ـ په پای کې باید د سیالۍ پایله اعلان شي.

**۵ـ د خبرو اترو او بحث تګلاره**

په دې تګلاره کې ښوونکی فکري سوالونه برابروي او زده کوونکو ته د مناقشې وخت ورکوي. وروسته سم او صحیح ځوابونه ورڅخه ټاکي او هغه د تختې په مخ لیکي په همدې ډول مخ ته ځي څو د موضوع ټول عناصر د پوره والي خواته لاړ شي، په پای کې جمع بندي کیږي او د هغو افکارو ترمنځ ارتباط، چې زده کوونکي سره توافق ته رسیدلی د آیات او حدیث په استدلال او د فقهې په دلایلو سره، یا له نورو اقوالو او اعمالو څخه دې استفاده وشي څو ټول زده کوونکي پکې ونډه واخلي او د شریعت سرچینې او منابع له استدلال سره ثبوت شي.

**٦ـ د مسالې د حل طریقه**

په دې طریقه کې یو شکل او یا یوه پوښتنه مطرح کېږي چې ورځني ژوند پورې اړونده وي څو د زده کوونکو توجه ځانته راواړول شي او د دوی دیته ته پام شي چې د هرې ستونزمنې مسلې د حل لپاره پوښتنې وکړي.

په دې تګلاره کې د زده کوونکو د فکر کولو، سوچ کولو، تحقیق کولو، او د منابعو او سرچینو د لاښه استفاده کولو وړتیا پیاوړې کیږي، دا ځکه چې اسلامي احکام او اسلامي تصمیمونه د زده کوونکو له ورځنیز ژوندانه سره تړاو لري او د ژوند ټولو چارو او قضیو له حل او ستونزو سره اړیکه لري، ددې تګلارې په ترسره کولو سره زده کوونکي دا زده کوي چې څنګه په ټولګي کې فعاله ونډه واخلي او له زده کوونکو سره مرسته کوي چې د شریعت حکمت ښه او په تدبیر سره درک کړي.

**٧ـ د تحلیل او تجزیې تګلاره**

په دې تګلاره کې د لوست محدودول چې د مفهومونو درلودونکی وي مثالونو ته په کتو سره وړاندې کیږي او د مثالونو په ورکولو سره ددې کار په بیلابیلو تګلارو او پړیکړو په کولو سره ترسره کیږي.

ـ د مثبتو او منفي مثالونو په ورکولو سره ځانګړی تعریف او خاصیتونو سره فشرده خاصیتونه.

ـ د مفهوم، مثبت او منفي مثالونه

ـ مثبت او منفی مثالونه او د مفهوم تعریف

د داسې تګلارو او کړنلارو په کار اچول چې له اسلامي تعلیم او تربیې سره مرسته کوي. د زده کوونکو د ذهنونو د لاپراختیا په موخه له دې ډول تګلارې کار اخیستل کیږي دا د دې لپاره چې ښه مفهوم ترسره شي او د اسلام په حقیقي مانا پوهه ترلاسه کړي.

**٨ـد قیصې او حکایت کولو تګلاره**

ښوونکی د تاریخ او واقعاتو د تدریس پرمهال له دې تګلارې کار اخلي، په داسې حال کې چې د قیصې اساسات مراعات کړل شي او هغه قیصې چې د تدریس په برخه کې ترې کار اخیستل کیږي، ډېرې په کار راځي د لوست په واضح کولو کولای شي له دې کار څخه ګټه واخلي، دا تګلاره معمولا د ماشومانو او لویانو لپاره کارول کیږي، همدارنګه د سیرت نبي د تدریس پرمهال او یاېې د اخلاقو د تدریس پرمهال ترې کار اخیستل کیږي.

د قصې کولو د تګلارې مهم ټکي په لاندې ډول دي:

ـ لنډې وي او د درسي ساعت له ختمېدو مخکې خلاصیږي.

ـ په دې تګلاره کې د زده کوونکو زده کړه په پام کې نیول کیږي.

ـ د زده کوونکو د علاقې او دلچسپی سبب کیږي.

**۹_ د نمایش تګلاره**

په دې تګلاره کې ښوونکی ځینې معلومات لیکي، وروسته هر زده کوونکي ته نقش ورکوي چې په ذهن کې یې کښیني او د تل لپاره یې په ذهن کې پاتې شي.

ددې تګلارې په پلي کولو کولای شي د اوریدیزو او لیدیزو ښودنو څخه استفاده وکړ، لکه، رادیو، ویډیو او داسې نور، اړینه ده چې په تمثیل کې د پیغمبرانو له تمثیل څخه ډډه وکړو ځو ددوی شخصیتونو ته کومه ستونزه ونه رسیږي.

**۱۰_ د لکچر طریقه او میتود**

ښــــوونکی هغه وخت دا طریفه په کار اچوي چې ښوونکی مخکې زده کوونکو ته لوست مفاهیم وړاندې کړي او خپل ځان ډاډه کړي چې د زده کوونکو ذهنونو ته تر کومې اندازې معلومات او مفاهیم انتقالولی شي د یادولو وړده چې ښوونکی موضوع ډېره اوده نکړي او له ډېرو او بې ځایه خبرو ډډه وشي، زده کوونکو پاملرنه راجلب کړل شي چې زده کوونکي وکولای شي په لوست کې پوره ونډه واخلي او د ښــــو خبرو کولو اسلوب مرعات شي او خطابه پکې تحقیق ومومي.

**۱۱_د مشق او تمرین طریقه او تګلاره (تکرار)**

په دې طریقه کې د قرآن د حدیثو او هغو متنونو په تدریس کې چې له زده کوونکو یې د سم او دقیق ویلو غوښتنه شوي وي کار اخیستل کیږي، زده کوونکو د تجوید له احکامو سره سم د کلمو او متنونو جرایت اوروي.

په لومړنیو ټولګیو کې د قرآن تلاوت په ورزده کولو او په ځانګړي توګه د سورتونو د حفظ او احادیثو په یادولو کې ښوونکي اړ دی چې له دې طریقې کار واخلي.

په کوم ډول چې ښوونکي د یو آیت او یا د هغو د یو جز تلاوت کوي یا یې لولي او زده کوونکي یې په ډلییزه توګه ورپسې تکراروي، لکه څنګه چې سختې کلمې او هغه عبارتونه چې لانورې توضیح او تشریح ته اړتیا لري جدا جدا تکراروي.

**۱۲– عملي تمرین**

عملي تمرین د عملي موضوعاتو او مهارتونو د پر مخ بیولو په پروسه کې اړین دی. زده کوونکو ته په عمل کې وروښودل شي، لکه: لمونځ، اودس، تیمم او دکامل تلاوت مهارتونه، د څېړنې مهارتونه او د رسم او نقشو په کارول او ویل، دا هغه لارې او تګلارې دي چې د تطبیقولو وړ دي، دا که په ټولګي کې د ننه یا بهر وي. باید ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه وکړي. په هغه صورت کې چې زده کوونکي وکولای شي درک یې کړي.

**۱۳_ د پلټنې او کشف تګلاره**

په دې تګلاره کې زده کوونکی د معلوماتو د راټولولو لپاره نورې سرچینې لټوي او مؤظف کیږي چې نور معلومات پیدا کړي، دوی د آیتونو عمق ته ځي او په اړه یې فکر کوي. دوې میتود پواسط د تفسیر له کتابونو او نورو اړونده ځایونو څخه چې په تخصص پورې یې اړوند وي او له نوو نشراتو او ورځپاڼو څخه استفاده کوي.

په دې تګلاره کې د زده کوونکو نقش بحث او اکتشاف او د معلوماتو راټولول دي، له هغه وروسته د معلوماتو منظم کول او وړاندې کول او په اړه یې له نورو زده کوونکو سره مناقشه کول دي، لنډه دا چې د کوم څه په اړه چې مناقشه کیږي په تخته لیکل کیږي.

_ د لوست سریزه د زده کوونکو د ذهنونو د برابرولو لپاره یوه بله تګلاره ده، لکه د شکلو په ښوولو سره، د سوالونو په کولو سره، د جالبې قیصې په ویلو سره، د تصویر په ښودلو سره او هم د تیر لوست په تکرارولو او د داسې نورو شیانو په ویلو سره چې د مقدمې او وسایلو په وړاندې کولو سره توضیح ورکړل شوې وي.

_ د اسلامې عقیدې سرچینه او منبع ټول هغه موضوعات دي، چې په اسلامي زده کړو پورې اړوند دي.

ـ زده کوونکي د لوست په جریان کې فعالې ونډې اخیستلو ته تشویق کیږي، تر کومه حده چې امکان ولري، چې په دوی کې په خپله زده کړه پروسه قوي شي.

ـ د تدریس له بېلابېلو ډولونو او طریقو څخه په استفاده او د هغې په کارولو سره څو په پام کې موخې ترسره شي او د ټولګي ټولو زده کوونکو تر منځ شخصي او فردي توپیرونه په پام کې ونیول شي او عملي تمرین هم بدلیدونکی او رابدلېدونکی شي، نو همدې اساس د تدریس طریقې، لارې او تګلارې، د ویلو طریقه، د مفاهیمو د تحلیل طریقه، د تمثیل او پلټلو طریقه، د په بېلابېلو عملي تمرینونو په کولو څخه په لوست کې کیفیت رامنځ ته کوي او د زده کوونکو ډېره ونډه رامنځ ته کوي او د زده کړې له بهیره خوند اخلي. په یوه تدریس کې د یو اوږد مهاله تدریس له لارو چارو باید کار وانه خیستل شي.

ـ ښوونکي باید ډېره هڅه وکړي چې د قرآن کریم د شواهدو له مخې او د زده کوونکو د علمي کچې او عقلي توانایې ته په پام سره وټاکي:

په پای کې د ټولو ښوونکو پام څو لاندې اصولو ته را اړوو چې په رعایت کولو سره یې د زده کوونکو په رویه او ذهنیت کې بدلون راولي.

۱. ښوونکي د دې کتاب په لارښوونو مکلف دي او همدارنګه هر هغه څه، چې په تدریس کې ګټور پریوځي کولای شي ترې استفاده وکړي.
۲. د ښوونکو له دندو او مکلفیتونو څخه دا هم ده چې لارښود کتاب تر تدریس مخکې مطالعه کړي او د لوست ورکولو لپاره پوره چمتوالی ونیسي.
۳. اړینې زده کړې په ژوره توګه مطالعه کړئ او مفهوم او محتویات یې د امکان په صورت کې په ساده ژبه شاګردانو ته وښیئ.
۴. ښوونکی دې په ټولګي کې له سلام له اچولو وروسته د لوست په ورکولو پیل وکړي. د اوداسه په لرلو سره دې د الله په نوم د ثواب د ترلاسه کولو او د هېواد د پرمختګ په موخه دې د هېواد بچیانو ته تدریس مخ ته بوځي.
۵. له زیاتو او بې موردو خبرو څخه دې ډډه وکړئ، علمي او شرعي حقیقتونه له خپلو زده کوونکو مه پټوئ!
۶. که په کتاب کې د ښوونکي لارښود کتاب کې له کومې غلطۍ سره مخ شوئ نو په سمولو کې یې هڅه وکړئ. په پای کې د لوی خدای ج له در باره د هېواد ټولو زده کوونکو او ښوونکو، ته لابریاوې او کامیابي غواړو.

**با احترام**

**د لسم ټولګي د ښوونکي لارښود کتاب تالیف کوونکی**

**مؤلف عنایت الله عادل د دیني علومو د ډیپارټمنټ علمي او مسلکي غړی**

لومړی لوست

## سرلیک: د عقایدو علم

**پانه: ۱ – ۳**

**وخت:** (دوه درسي ساعتونه)

**موخې:**

**زده کوونکي باید**

۱ – د عقایدو د علم په تعریف، موضوع او غرض پوه شي.

۲ – د عقایدو د علم په اړه بحث او خبرې وکړی شي.

۳ – د دې لوست شرعي حکم په دقیق ډول و پېژني او نورو ته یې ورسولی شي.

۴ – د عقایدو د علم حکم وپېژني.

**لازمي پوهه**

په درسي کتاب کې د عقاید د تعریف، موضوع، غرض، ګټې، ارزښت او غوره والي او هم یې د حکم په اړه مفصل معلومات راغلي او موږ دلته د هغو اختلافاتو او د هغو د سبب په اړه لنډې خبرې کوو چې په اعتقادي احکامو کې رامنځ ته شوي دي. البته په عقایدو کې تدریجی بدلون د علم، فنونو او د انساني افکارو د پرمختګ پایله ګڼل کېږي چې په اسلام کې دا قاعده هم شته.

**د عقایدو د علم د پیدایښت تاریخ**

څرنګه چې قرآن کریم د اسلامي عقیدې بنسټ او د نبي‌ﷺ سنت د هغې شارح ګڼل کېږی، د پیغمبر‌ﷺ په زمانه کې چې د تشریع او د اسلامي عقیدې د بیان زمانه وه، محمدﷺ دغه علم خپلو مخالفینو او اصحابو کرامو ته واضح کړی دی. نبي‌ﷺ به د خپلو اصحابو عقیدوي پوښتنې ځوابولې. د راشدو خلفاوو او لویو صحابه کرامو په وخت کې هم دغه علم په همدې ډول پر مخ لاړ، تردې چې د اسلام دین پراخ شو او داسې خلک او قبایل په اسلام مشرف شول، چې عرب نه وو او د اسلامي د دین لمن د عربو له جزیرې څخه د باندې هم ورسیدله. د علم زده کړه او نور تمدنونه د دې لامل شول، چې په ټولو دیني علومو کې هم بحث او استدلال پراختیا ومومي چې په دې لړ کې د عقایدو علم هم بې برخې پاتې نه شو.

د ابو جعفر منصور او بیا د هارون الرشید په وخت کې د یونان فلسفه او منطق ترجمه او په اسلامي ټولنه کې خپاره شول او د مامون الرشید په وخت کې دغه علم لا پراخ او اوج ته ورسېد، ځکه چې مامون په خپله عربي ژبې او د دې علومو ژباړې او ترجمې ته ډېره توجه وکړه.

مګر علم الکلام (عقاید) هغه مهال د نورو علومو په څېر خپل اساسات، بحثونه او بېلابېل عقلي او نقلي بحثونه خپل کړل او بنسټ یې کېښودل شو چې په دویمه پېړۍ کې د معتزله مذهب څرګند شو.

**اقسام او شرعي احکام**

د اسلام د سپېڅلي دین احکام، ارشادات، امر او نهیې چې د مسلمانو د ژوند مادي او معنوي، دینوي او اخروي، وګړنیز او ټولنیز ژوند تنظیم او تشریح کوي، په اساسي ډول د قرآنکریم د آیاتونو او د نبوي احادیثو په واسطه بیان شوي دي او وروسته د وخت اړتیا ته په کتو سره یو شمېر امامانو او مجتهدینو هم د قرآني آیاتونو او نبوي احادیثو په رڼا کې په دې اړه څېړنې کړې دي، دغه احکام او قوانین، چې د مسلمانانو دنیوي او اخروي ژوند دواړه تنظیموي، یو شمېر یې د عملي موضوعاتو څرګندونه کوي او یو شمېر نور یې د نظري (عقیدوي) موضوعاتو تشریح ده، له دې امله شرعي احکام په دوو برخو وېشل کېږي:

**۱ــ عملي احکام**

هغه احکام دي، چې د اعمالو د ترسره کولو په کیفیت پورې اړه لري، لکه: عبادتونه، شخصي احوال او راکړه ورکړه چې په شخصي او ټولنیز ژوند کې د مسلمانانو د کړنو ښکارندوی دي، دغه احکامو ته د دین فروعات هم وایي، لکه چې فرع د اصل تابع ده او د اصل د ونې یوه څانګه ده، همداسې د مسلمان کړنې هم د هغه پر عقیده بانــدې ولاړې دي او د اعمــالو صحت او سموالی یې د عقیدې تر سموالي وروسته ثابتېږي.

**۲ــ عقیدېي احکام**

دغه احکام په عقیده پورې اړوند مسایل، لکه: د الله یوالی او صفتونه، د حضرت محمــدﷺ رســالت، پیغمبــران، اســماني کتابونه، د اخرت ورځ او نور مسایل توضیح کوي چې دغو احکامو ته د دین اصول هم وایي، د اسلام په سپېڅلي دین کــې عقیدې او ایمان ته ځانګړی ارزښت ورکړل شوی او ان دا چې هغه یې د اعمالو د سموالي او نا سموالي معیار ټاکلی دی او الله ﷻ هم د عقیدې پر بنسټ د نیکو اعمالو په بدل کې اجر او ثواب او د بدو اعمالو په بدل کې ســزا ورکــوي، د دغــو احکامو او اصولو له ټولګې (مجموعې) څخه اسلامي عقاید را منځته کېږي.

**د عقاید د علم نومونه**

د اسلام په قاموس او فرهنګ کې عقاید په بېلابېلو نومونو یاد شوي دي چې د هغوی مفهوم یو شی او محتوا یې هم توپیر نــه لري چې دغه نومونه عبارت دي له:

۱- د توحید او یوالي علم ۲- علم کلام ۳- د دین اصول

**د تدریس مېتود** سوال او ځواب، تشریحي خبرې او مباحثه.

**مرستندیه درسي توکي** کتاب، تخته، تباشیر...

| وخت | فعالیتونه |
|---|---|
| ۵دقیقې | - ښوونکی دې له سلام اچولو او روغبړ وروسته له زده کوونکو سره پېژندګلوي وکړي او د اسلامي ښــوونې او روزنې د کتاب (لسم ټولګي) په اړه دې په لنډه ډول خبرې وکړي او د کتاب درې برخې دې هغــوی تــه ورو پېژني.<br>- ښوونکی دې د عقاید مضمون او د هغه د اهمیت په اړه زده کوونکو ته لازم معلومات ورکړي. |
| ۲۵ دقیقې | ښوونکی دې پر زده کوونکو باندې درس په ټیټ غږ مطالعه کړي. وروسته دې یو زده کــوونکی هغــه درس ولولي او نور دې هغه ولیکي:<br>- علمي احکام،<br>- اعتقادي احکام،<br>- دعقاید د علم موضوع،<br>- د عقاید د علم غرض،<br>- د عقاید د علم ارزښت او د هغه برتري،<br>- د عقاید د علم حکم،<br>ښوونکی دې له جانبي سرلیکونو څخه په ګټې اخستنې سره د زده کوونکو لپاره درس تشریح کړي او د درس په مهمو ټکو باندې دې ډېر تمرکز وکړي:<br>عملي احکام هغه احکام دي، چې عملي جنبه لري، لکه: لمونځ، روژه، حج او زکات. اعتقادي احکــام هغــه احکام دي چې په عقیده او باور لرلو پورې اړه لري، لکه: د خدایﷻ، ملائیکو، کتابونو، رسولانو او دمعــاد |

پر شتوالي باور. د عقاید علم د نورو علومو په پرتله ارزښتمن دی، ځکه چې پر خدایﷻ باور او ایمان په توحید پورې اړه لري. د عقاید علم زده کړه په اجمالي ډول پر هر مسلمان نر او ښځه باندې فرض عین دی.

وروسته ښوونکي له ځو زده کوونکو څخه غواړي، چې هر یو یو سرلیک لوست په خپله وار سره خپلو ټولګیوال ته تشریح کړي.

**لنډیز**

دغه لوست په لاندې ټکو کې لنډولی شو:

– د عقاید په علم کې عملي احکام له شرعي اعمالو او احکامو څخه عبارت دي.

– اعتقادي احکام له هغو احکامو څخه دي عبارت چې په عقیده پورې اړه لري.

– عقیده ګنډه کولو ته وایي. کله چې انسان پر یو شي باور کوي، د هغه د حقانیت په زړه پورې ګنډه کوي.

– د اللهﷻ پر وجود، توحید او د پیغمبرانو په رسالت، ملائیکو، اسماني کتابونو او آخرت ایمان او باور د عقاید د علم موضوع ده.

۱۰ دقیقې

– د عقاید د علم عرض په دنیا او آخرت کې د انسان نیک بختي او راستکاري ده.

– اسلامي عقیده په نورو نومونو، لکه: علم توحید، اصول دین، فقه اکبر او ایمان یادېږي.

– د عقاید علم د نورو ټولو علومو په نسبت ځانګړی اهمیت لري، ځکه چې دا د اللهﷻ پر وجود او توحید پورې مستقیمه اړیکه لري.

– د عقاید علم په اجمالي ډول فرض عین او په تفصیلي ډول فرض کفایي دی.

**ارزونه**

ښوونکی دې د لوست د زده کړې په اړه د اطمېنان په موخه له زده کوونکو لاندې پوښتنې وکړي.

– څوک عقیده تعریف کولای شي؟

– څوک د عقاید د علم غرض تشریح کولای شي ؟

– څوک د عقاید د علم ارزښت او اهمیت پر دوه جملو کې بیانولاي شي؟

– څوک د عقاید د علم حکم ویلاي شي؟

۵ دقیقې

**کورنۍ دنده**

ښوونکی دې زده کوونکو ته د عقاید د علم په اړه یوه مقاله چې شپږ کرښې وي کورنۍ دنده ورکړي.

دويم لوست:

## سرليک: د الله تعالی پر وجود ایمان

**پانه: ۴-۶**

**وخت:** (دوه درسي ساعتونه)

**موخې:** زده کوونکي باید:

- د الله تعالی د وجود دلایل زده کړي.
- د الله تعالی د وجود په اړه عقلي دلایل و وایي.
- د الله تعالی پر وجود باندې ایمان ولري او په دقیق ډول درک کړي.

**لازمي پوهه**

د اللهﷻ پر وجود نقلي دلایل:

**الف: قرآنکریم:**

په قرآنکریم کې ډېر آیتونه شته چې د اللهﷻ وجود ثابتوي او خلکو ته پر هغه باندې د ایمان لر لو امر کوي لکه چې وایي «قُلْ هُوَ اللَّهُ أَحَدٌ (١) اللَّهُ الصَّمَدُ (٢) لَمْ يَلِدْ وَلَمْ يُولَدْ (٣) وَلَمْ يَكُنْ لَهُ كُفُوًا أَحَدٌ (٤)

ژباړه: ووایه الله یو دی، بې نیازه دی، نه د چا نه زیږیدلی او نه چا زېږولی دی او هېڅ څوک د هغه سیال نه دی.

«إِنَّنِي أَنَا اللَّهُ لَا إِلَهَ إِلَّا أَنَا فَاعْبُدْنِي وَأَقِمِ الصَّلَاةَ لِذِكْرِي» [1]

ژباړه: حقیقت دا دی چې زه الله یم او هېڅ معبودې برحق نه شته زما عبادت وکړئ او زما د ذکر لپاره پر لمونځ ودریږئ.

«فَاعْلَمْ أَنَّهُ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَاسْتَغْفِرْ لِذَنْبِكَ وَلِلْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِنَاتِ وَاللَّهُ يَعْلَمُ مُتَقَلَّبَكُمْ وَمَثْوَاكُمْ» [2]

ژباړه نو وپوهېږه چې له الله پرته بل د عبادت وړ څوک نه شته، له همدې امله له الله نه د خپلو او د خپلو نارینه وو او ښځینه وو د ګناهونو لپاره د بښنې او ایمان غوښتنه وکړه، همدا الله دی چې ستاسې هر یوه له فرجام او مال څخه خبر دی.

«وَاعْبُدُوا اللَّهَ وَلَا تُشْرِكُوا بِهِ شَيْئًا وَبِالْوَالِدَيْنِ إِحْسَانًا وَبِذِي الْقُرْبَى وَالْيَتَامَى وَالْمَسَاكِينِ وَالْجَارِ ذِي الْقُرْبَى وَالْجَارِ الْجُنُبِ وَالصَّاحِبِ بِالْجَنْبِ وَابْنِ السَّبِيلِ وَمَا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ مَنْ كَانَ مُخْتَالًا فَخُورًا» ([3])

ژباړه: او د الله عبادت وکړئ او له هغه سره هېڅ شی شریک مه نیسئ، له مور او پلار سره نیکي وکړئ، له خپلوانو، یتیمانو، مستمندانو، له خپلو ګاونډیانو او د نورو له ګاونډیانو، په لار کې پاتې کسانو او خپلو غلامانو سره نیکي وکړئ، ځکه الله کبرجن انسانان نه خوښوي.

**ب: د پیغمبرﷺ احادیث**

حضرت محمدﷺ چې د اللهﷻ ریښتینی استازی و، د رسالت تر ټولو مهمه موضوع یې له شرک او ګمراهی نه د انسانانو نجات او اللهﷻ عبادت او یوالي ته د خلکو را بلل وو، ده هم د اللهﷻ د یوالي او وحدانیت په اړه ډېر ارشادات کړي دي چې د بېلګې په توګه به یې د ځینو یادونه وکړو: عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ بُنِيَ الإِسْلامُ عَلَى خَمْسٍ: شَهَادَةِ أَنْ لاَ إِلهَ إِلا اللهُ، وَأَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ، وَإِقَامِ الصَّلاةِ، وَإِيتَاءِ الزَّكَاةِ، وَحَجِّ الْبَيْتِ، وَصَوْمِ رَمَضَانَ. [4]

---

[1] طه:۱۴

[2] محمد ۱۹

[3] النساء ۳۶

[4] – المفهم لما اشکل من تلخیص کتاب مسلم جزء ۱ ص ۸۹

ژباړه: اسلام پر پنځو بنسټونو ولاړدی، چې د الله ﷻ پر یوولي شهادت دی(له الله ﷻ پرته بل څوک د عبادت وړ نــه دي او محمدﷺ د هغه استازی دی)، د لمانځه ترسره کول، د زکات ورکړه، حج او د روژې نیول دي.

او په بل ځای کې فرمايي: {بايعوني على أن لا تشركوا بالله شيئاً، ولا تسرقوا، ولا تزنوا، ولا تقتلوا أولادكم، ولا تأتوا ببــهتان تفترونه بين أيديكم وأرجلكم، ولا تعصوا في معروف}. ([1])

ژباړه: له ما سره بیعت وکړئ، ځکه چې له الله ﷻ سره څوک شریک و نه نیسئ، غلا ونه کړی او اولادونه مو ونــه وژنــی، هغه تهمت چې په خپلو لاسونو او پښو یې ترسره کوی ونه کړی، له امر باالمعرف نه سرغړونه ونه کړئ.

**عقلي دلیلونه**

د انسان د بدن هر غړی ځانګړې دنده لري، د عقل دنده فکر دی، کله چې فکر له کاره ولوېږي او خپله دنده تــر ســره نــه کــړي د انسان له ژوند نه تازه ګي او سمسورتیا کډه باروي او ټولنه له مرګوني چوپتیا سره مخ کېږي. په داسې حال کې چې اســلام لــه عقــل نه غواړي، چې د ژوند له غفلت نه ځان بچ کړي او خپله اصلي دنده چې تدبیر او فکر کول دي، ترسره کــړي او دې تــه اصــلي او واقعي عبادت وايي. الله ﷻ فرمايي: «قُلِ انْظُرُوا مَاذَا فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَمَا تُغْنِي الْآيَاتُ وَالنُّذُرُ عَنْ قَوْمٍ لَا يُؤْمِنُونَ» ([2])

ورته و وایه چې وګوري، په ځمکو او اسمانونو کې څه شی دي، مګر ټولې نښې او نښانې او هغه کسانو ته چې ایمــان نــه راوړي ګټه نه رسوي.

د عقل عاطل او باطل کول  د حیواناتو درجې ته د انسان د سقوط سبب کېږي له همدې امله ده چې پخوانیو کسانو د خپــل عقلي فعالیت په پراخوالي سره حقایقو ته رسېدل، الله ﷻ فرمايي: «وَلَقَدْ ذَرَأْنَا لِجَهَنَّمَ كَثِيرًا مِنَ الْجِنِّ وَالْإِنْسِ لَهُمْ قُلُــوبٌ لَــا يَفْقَهُونَ بِهَا وَلَهُمْ أَعْيُنٌ لَا يُبْصِرُونَ بِهَا وَلَهُمْ آذَانٌ لَا يَسْمَعُونَ بِهَا أُولَئِكَ كَالْأَنْعَامِ بَلْ هُمْ أَضَلُّ أُولَئِكَ هُمُ الْغَافِلُونَ» ([3])

په حقیقت کې مو ډېری پیریان او انسانان د دوزخ لپاره پیدا کړي، ځکه دوی داسې زړونه لري چې په هغه حقایق نــه پیــدا کوي او داسې سترګې لري چې په هغو سره لیدل نه شي کولای او داسې غوږونه لري چې په هغو سره اورېــدل نــه شــي کولای، دوی د حیواناتو په څېر دي، بلکې له هغو څخه یې زیاته لاره ورکه کړې ده. همداسې ده هغوی غافلین دي.))

له عقل نه کار نه اخیستل د انسان مرتبه له انسانیت نه حیوانیت ته راټیټه وي او د هغه برخلیــک تــه د دوزخ پــه لــورې لارښوونه کوي.

**د تدریس مېتود:** پوښتنه او ځواب تشریحي– ډله ییز

**مرستندیه درسي توکي:** کتاب، تخته، تباشیر...

| وخت | فعالیتونه |
|---|---|
| ۵دقیقې | ښوونکی دې لومړني موضوعات وروسته تېر لوست په څو پوښتنو سره وارزوي د بېلګې په توګه:<br>– څوک ویلای شي، چې له اعتقادي احکامو څخه موخه څه ده؟<br>– د عقاید علم څوک تعریف ولي شي؟<br>وروسته محترم ښوونکی د نوي لوست (د الله تعالی پر وجود ایمان) سرلیک د تختې پرمخ لیکي.<br>ښوونکی د لوست متن په څو زده کوونکو باندې لولي او د قرآن کریم د آیت نص په دقت او ښه آواز سره |

[1] المتواری علی ابواب البخاری ج ۱ ص ۱۶۱

[2] – یونس ۱۰۱

[3] – الاعراف ۱۷۹

| | |
|---|---|
| ۲۵دقيقې | وايي، وروسته زده کوونکو ته وخت ورکوي، چې په خفيه ډول لوست مطالعه کړي او که چيرته کومه پوښتنه ورسره پيدا کيږي هغه له ځان سره ليکي او خپله د زده کوونکو د مطالعې پر وخت هغوی ته متوجه وي. وروسته محترم ښوونکی (وَإِلَهُكُمْ إِلَهٌ وَاحِدٌ لاَّ إِلَهَ إِلاَّ هُوَ الرَّحْمَنُ الرَّحِيمُ﴿١٦٣﴾ إِنَّ فِي خَلْقِ السَّمَاوَاتِ وَالأَرْضِ وَاخْتِلاَفِ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ وَالْفُلْكِ الَّتِي تَجْرِي فِي الْبَحْرِ بِمَا يَنفَعُ النَّاسَ وَمَا أَنزَلَ اللّهُ مِنَ السَّمَاء مِن مَّاء فَأَحْيَا بِهِ الأرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا وَبَثَّ فِيهَا مِن كُلِّ دَآبَّةٍ وَتَصْرِيفِ الرِّيَاحِ وَالسَّحَابِ الْمُسَخِّرِ بَيْنَ السَّمَاء وَالأَرْضِ لآيَاتٍ لِّقَوْمٍ يَعْقِلُونَ ﴿١٦٤﴾) آيت کريم زده کوونکو ته تشرح کوي او له هغوی غواړي چې په اړه يې فکر وکړي.<br>ښوونکی له يو زده کوونکي غواړي، چې له درسي کتاب څخه لاندې جانبي سرليکونه پر تخته وليکي.<br>- د الله تعالی د وجود نقلي دليل،<br>- له پورته آيت څخه د استدلال صورت،<br>- د الله تعالی د وجود نقلي دلائيل،<br>د الله تعالی ذات قديم دی<br>- د الله تعالی پر وجود د ايمان لرلو حکم<br>ښوونکی له جانبي سرليکونو څخه په ګټې اخستنې سره لوست تشريح کوي او وروسته له څو زده کوونکو څخه غواړي، چې يو يو څنګيز سرليک نورو ته تشريح کړي.<br>ښوونکی زده کوونکو ته هدايت کوي ترڅو هر کس د خپل څنګ ملګری سره د نقلي او عقلي دلايلو په اړه بحث وکړي او خپله د دغه فعاليت په جريان کې د ټولګي کنټرول او د زده کوونکو بحث او نظرياتو ته متوجه وي. |
| ۱۰دقيقې | **لنډيز:** دغه لوست په لاندې ټکو کې خلاصه کيږي:<br>- قرآن کريم د الله تعالی د وجود له نقلي دلايلو څخه ډک دی د بېلګې په ډول د بقرې سورت ۱۶۳ آيت.<br>- الله تعالی د ټولو مخلوقاتو مالک او خالق دی او هر مخلوق د خپل پروردګار د امر مأمور دی، لکه څرنګه چې د لوست مبارک آيت پر موضوع صراحت لري.<br>- د الله تعالی پر وجود عقلي دلايل بې شمېره دي او ترټولو غوره دليل يې همغه د امام صاحب دی چې دهري ته يې ويليو: څنګه کېدای شي چې يو نظام په خپله د يو تصادف له مخې پيدا شي، کله چې هغه امکان ونه لري يوه کښتۍ په خپله جوړه او له کښتيوان پرته څخه په خپل مسير حرکت وکړي.<br>- عاقل انسان کله چې په دقت سره د خدای هر مخلوق ته فکر وکړي بې له ځنډه شايد و وايي، چې دا ټول خالق لري او په خپله نه دي خلق شوي. |
| ۵دقيقې | **ارزونه:** ښوونکی دې لوست د زده کړې لپاره د درسي کتاب د پوښتنو له لارې زده کوونکي ارزيابي کړي. |
| | **کورنۍ دنده:** ښوونکی بايد زده کوونکي په هغه کورنۍ دنده مکلف کړي، چې په درسي کتاب کې راغلې ده. |

**دریم لوست:**

## سرلیک: د الله تعالی یوالی او وحدانیت

**پانه: ۷**

**وخت:** (دوه درسي ساعتونه)

**موخې:** زده کوونکي باید:

- د توحید او یوالي تعریف او د توحید پرډولونو وپوهیږي.
- د ربوبیت توحید په دلایلو سره ثبات کړي.
- د توحید د ډولو زده کول او نورو ته یې د رسولو وړتیا ولري.

**لازمي پوهه:**

خدای واحد دی، د واحد کلمه چې اسم فاعل دی له وحدانیت څخه اخیستل شوې، چې د یوالي په معنا ده یعنې غیرې متعدد دی. نو واحد اصل دی چې متعدات په هغې سره پای ته نه رسیږي یعنې هغه واحد او یګانه ذات دی چې په صفاتو او افعالو کې شریک او سیال نه لري. د الله ﷻ د یوالي د ثبوت لپاره ډیر زیات سمعي، بصري، عقلي او نقلي دلایل موجود دي. موږ دلته د هغو تکویني دلیل ته اشاره کوو، چې په هغو کې د الله ﷻ واحدانیت او یوالی عقلا او نقلا پیدا کولای شو. الله ﷻ د انبیا سورې په ۲۲ آیت کې فرمايي: (لَوْ كَانَ فِيهِمَا آلِهَةٌ إِلَّا اللَّهُ لَفَسَدَتَا فَسُبْحَانَ اللَّهِ رَبِّ الْعَرْشِ عَمَّا يَصِفُونَ)

ژباړه:

که په ځمکو او اسمانونو کې له الله پرته بل معبود وای، بېشکه چې د ځمکې نظم به خراب شوی و، الله د عرش مالک دی او له هغو صفتونو پاک دی چې دوی یې ورته منسوبوي.

په یو بل آیت کې فرمايي: وَمَا كَانَ مَعَهُ مِنْ إِلَهٍ إِذًا لَذَهَبَ كُلُّ إِلَهٍ بِمَا خَلَقَ وَلَعَلَا بَعْضُهُمْ عَلَى بَعْضٍ سُبْحَانَ اللَّهِ عَمَّا يَصِفُونَ.[1]

پورته آیاتونه په څرګند ډول نقلي دلایل دي، ولې په صراحت د عقلي دلایلو په توګه راغلي دي، په دې معنا چې که چېرې د ځمکو او اسمانونو چارې د یوه قدرت پر ځای د دوو یا څو قدرتونو په لاس کې وي دا کار به د دې سبب شوی و چې د ځمکې او اسمانونو نظم د سترګو د رپ په اندازه هم پر خپل حال پاتې نه شي.

عقلا هم ثابته ده، چې دوه پادشاهان په یوه سیمه کې نه سره ځاییږي.

له دویم او دریم آیت څخه هم په څرګند ډول ښکاري، چې که چېرې له الله پرته د واک څښتن او خپلواک بل ذات موجود او له الله سره شریک وي، له شک پرته، چې په دې صورت کې به یوه د بل د ځپلو هڅه کړې وه او په دې سره به اوسنی مستحکم نظام ان د څو ورځو لپاره هم نه و پاتې شوی.

او که په رامنځته کولو او نه رامنځته کولو کې یې ترمنځ اختلاف رامنځته شوی وای، په دې صورت کې به د احمد تحقق او موجودیت ناشونی شوی و او دا به لکه د نورو ممکن اتفاقونو په څېر دواړه هم په رامنځته کولو او نه رامنځته کولو کې عاجز بلل شوي وو. له دې پرته دا دومره ډېر کائنات باید په یوه واحد ختم شي، ځکه اصل د (یوه) په محدوداتو کې دی، نه په متعدد کې لدې امله هر مجموعه له یوه نه پیلیږي.

---

[1] – بنی اسرائیل آیه ۴۳.

**د تدریس میتود:** پوښتنه او ځواب– مباحثه– تشریحي بحث

**مرستندیه درسي توکي:** کتاب، تخته، تباشیر...

| وخت | فعالیتونه |
|---|---|
| ۵ دقیقې | – ښوونکی دې مقدماتي فعالیت وروسته تېر لوست په څو پوښتنو سره ارزوي: د مثال په ډول:<br>– څوک د الله تعالی د وجود یو نقلي دلیل بیانولای شي؟<br>– څوک کولای شي د الله تعالي د وجود یو عقلي دلیل بیانولای شي؟<br>– وروسته محترم ښوونکي د نوي درس سرلیک د یو زده کوونکي لخوا په تخته لیکي او له زده کوونکو څخه غواړي چې د دغه سرلیک پر مفهوم څوک پوهیږي وروسته له ځوابونو د الله تعالي د وحدانیت په اړه لنډې خبرې کوي. |
| ۲۵ دقیقې | محترم ښوونکي زده کوونکو ته څو دقیقي وخت ورکړي ترڅو درس په خفیه ډول مطالعه کړي او که د مطالعې په جریان کې کومه پوښتنه پیدا کیږي هغې ته ځواب وایي.<br>ښوونکی له دوه زده کوونکو څخه غواړي، چې یو یې له لاندې جانبي سرلیکونو څخه ولولي او بل یې هغه د تختې پر څنډه ولیکي.<br>– د توحید تعریف – د توحید شرح – د توحید اقسام – د ربوبیت توحید – د ربوبیت د توحید د اثبات دلیل<br>محترم ښوونکی جانبي له جانبي سرلیکونو څخه په استفادې سره د زده کوونکو لپاره درس تشریح کوي او د هغه په اساسي ټکو باندې ډېر تمرکز کوي.<br>وروسته ښوونکی له څو زده کوونکو څخه غواړي ترڅو هر یو په خپل نوبت سره یو درس تشریح کړي.<br>ښوونکی د قرآني درس نصوص په خپله په دقت او مناسب آوازه سره لولي او ترجمه کوي او نور پاتې متون د څو زده کوونکو لخوا چې لږ علاقه لري وايي.<br>– ښوونکی ټولګی په دوو ډلو باندې وېشي او له هغوی غواړي چې د یوې ډلې غړي له بل ګروپ څخه د ربوبیت د توحید په اړه پوښتنې کوي او خپله د اشتباه ځوابونه د اصلاح په موخه له ځان سره یادښت کوي.<br>**لنډیز:** دغه درس په لاندې ټکو کې خلاصه کیږي:<br>– الله تعالی په خپل ذات او صفات کې هیڅ شریک نه لري او بې نیازه دی او ټول مخلوق هغه ته محتاج دی. |
| ۱۰ دقیقې | – د توحید کلمه مصدر دی چې مانا یې یو دی.<br>– د الله تعالی توحید پر درې ډوله دی: د ربوبیت توحید، د الوهیت توحید او د اسمآء او صفاتو توحید.<br>– د ربوبیت د توحید څخه موخه پردې عقیده لرل دي، چې یوازې الله رب، مالک، رزاق، مدبر، د خیر او شر رسوونکی او د ټولو اشیاؤ متصرف دی.<br>– د الله تعالی د ربوبیت د توحید د اثبات دلایل د قرآن کریم په متعددو آیاتونو سره ثابت دی د بېلګې په توګه: (الله خالق کل شئ وهو علی کل شئ وکیل) |
| ۵دقیقې | **ارزونه:** ښوونکی دې درس د زده کړې لپاره د درسي کتاب له پوښتنو له لارې زده کوونکي ارزیابي کړي.<br>**کورنۍ دنده:** ښوونکی دې زده کوونکو ته دنده ورکوي، ترڅو د درس مبارک آیتونه له ترجمې سره حفظ کړي. |

څلورم لوست:

## سرلیک: د الوهیت توحید

**پانه:** ۹– ۱۲

**وخت:** (دوه درسی ساعتونه)

**موخې:** زده کوونکي باید:

۱– په دقیق ډول د الوهیت توحید پېژدنه

۲– د الوهیت د توحید په سم ډول توضیح

۳– د الوهیت توحید د اثبات دلیل په سم ډول زدکول او ارزښت یې نورو ته ویل

**لازمي پوهه:**

د توحید له ډولونو یو هم د الوهیت توحید دی. د الوهیت توحید د مومنانو د عقیدې اړین جز دی چې د دغه توحید اصلي غایه او پایله د اسما او صفاتو توحید دی. د دې توحید اساسي مفهوم دا دی چې الله تعالی یوازینی پر حق معبود دی او یوازې ده ته باید سر ټیټ شي او له ده نه مرسته وغوښتل شي یا په بل عبارت د الوهیت توحید هغه دی چې هر ډول قلبي، بدني او مالي عبادات باید الله تعالی ته ځانګړي شي او عباد کوونکي باید په دې باور وي چې دی د هغه ذات بندي کوي چې پر ده کاملا قادر او عالم دی یعنې د دونیا او آخرت مالک او عالم المغیب یوازې الله تعالی دی او یوازې همغه کولای شي موږ ته ګټه او تاوان را ورسوي.

د همدې حقیقت پر بنسټ الله تعالی د انسانانو او پېریانو د پیدایښت علت خپل عبادت بللی دی او فرمایلي یې دي:
« وَمَا خَلَقْتُ الْجِنَّ وَالْإِنْسَ إِلَّا لِيَعْبُدُونِ» ([1])

ژباړه: ما پیریان اوانسانان نه دي پیدا کړي اما د دې لپاره چې زما عبادت وکړي.

د همدې واقعیت پر بنسټ ټول انسانان اړ دي چې یوازې د الله تعالی پیروي او عبادت وکړي او هېڅ شی له هغه سره په عبادت کې شریک نه کړي پر همدې اساس ده چې مسلمان د لمانځه په هر رکعت کې د (إِيَّاكَ نَعْبُدُ وإِيَّاكَ نَستَعِينُ) په ویلو سره خپل پرودګار ته خپل مناجات وړاندې کوي او له ده سره ژمنه کوي او هغه خپل یوازینی معبود او مستعان ګڼي، همدا رنګه ګورو چې الله ﷻ خپل پیعمبر ته د خپل ذات د عبادت په اړه داسې وايي: (قُلْ إِنَّ صَلَاتِي وَنُسُكِي وَمَحْيَايَ وَمَمَاتِي لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ (۱۶۲) لَا شَرِيكَ لَهُ وَبِذَلِكَ أُمِرْتُ وَأَنَا أَوَّلُ الْمُسْلِمِينَ (۱۶۳))

ژباړه: او و وایه ای محمده زما لمونځ، روژه، حج، قرباني او زما ژوند او مرګ د الله تعالی لپاره دي، په دغو عباداتو کې د هغه لپاره هېڅ شریک نه شته او زه د هغه پر توحید مامور شوی یم او له ټولو وړاندې زه د هغه فرمان وړونکی یم. د همدې د الوهیت د توحید پر بنسټ ټولو پیغمبرانو خپل قومونه د یوازیني الله عبادت ته رابللي او خلک یې له شرک او باطل لمانځلو څخه منع کړي دي، وینو چې قرانکریم په دې اړه وايي: وَلَقَدْ بَعَثْنَا فِي كُلِّ أُمَّةٍ رَّسُولاً أَنِ اعْبُدُواْ اللّهَ وَاجْتَنِبُواْ الطَّاغُوتَ. نحل ۳۶.

ژباړه: بې شکه موږ له تاسې وړاندې هر ډلې ته یو پیغمبر استولی و چې خلک زما عبادت ته را وبولي او خلک له ما پرته د نورو له عبادت نه منع کړي.

پر همدې اساس قرانکریم د نوح، هود، صالح، ابراهیم، موسی، عیسی، شعیب او نورو پیغمبرانو له لوري خپلو قومونو ته د دعوت یادونه په اعراف، عنکبوت، شعراء، ال عمران سورتونو کې کړې ده.

په لاندې آیت شریف کې ګورو چې رسول الله ﷺ څه ډول خلک د الله ﷻ عبادت ته رابلل او د باطلو معبودانو له عبادت

[1] – الذاریات ۵۶

څخه یې منع کول: (قُلْ يَا أَهْلَ الْكِتَابِ تَعَالَوْاْ إِلَى كَلَمَةٍ سَوَاء بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ أَلاَّ نَعْبُدَ إِلاَّ اللّهَ وَلاَ نُشْرِكَ بِهِ شَيْئًا وَلاَ يَتَّخِذَ بَعْضُنَا بَعْضاً أَرْبَابًا مِّن دُونِ اللّهِ فَإِن تَوَلَّوْاْ فَقُولُواْ اشْهَدُواْ بِأَنَّا مُسْلِمُونَ) ال عمران ۶۴.

ژباړه: و وایه ای د کتاب څښتنو راشی پر هغه خبره چې زموږ او ستاسې ترمنځ یو شان ده ودرېږو، چې له خدای پرته د بل چاعبادت و نه کړو، او له هغه سره څوک شریک و نه نیسو او زموږ یو شمېر نور په خدایی و نه نیسو، نو که چېرې اعتراض وکړي ووایی چې شاهد اوسی چې موږ مسلمانان یو نه تاسې.

د ځمکې پرمخ د انسانانو د ډېروالي حکومت د الله تعالی عبادت دی، پر دې اساس ټولو نړیوالو، ملتونو او قومونو ته د توحید رسول د مسلمان رسالت دی له همدې امله موږ د ماشوم په غوږ کې آذان کوو، د مسلمان د مرګ پر مهال آذان کوو او کلیمه طیبه ورته تلقینه وو، پر همدې اساس ده چې د قادسیې په جګړه کې ربیعي بن عامر رضي الله عنه د فراسیوانانو د مشر په ځواب کې و ویل چې موږ د یوه قوم خلک یو چې الله موږ د دې لپاره را استولي یو، څو بنده ګان بنده ګانو ته له عبادت نه د الله عبادت ته دعوت کړو.

پر همدې اساس ګورو چې د الوهیت توحید دری بنسټونه لري.

۱- په عباداتو کې اخلاص او یوازې له الله جل جلاله سره صحبت لرل.

۲- له شرک او طواغیتو نه انکار او بې زاري.

۳- له هر ډول شرک ځان ساتل او د ټولو هغه لارو تړل چې شرک ورڅخه پیدا کېدلای شي.

پر همدې اساس پیغمبرانو د الوهیت توحید ته ډېر ارزښت ورکاوه او الله جل جلاله هم خپل کتانوبونه د الوهیت د توحید پر بنسټ را استولي دي او د آیاتو او علایمو په واسطه یې خلکو ته څرګند کړی دی.

له همدې امله د همدې توحید پراساس خلک د دوزخ او جنت لور ته سوق شوي او وړاند وینه یې شوې ده.

**د تدریس مېتود:** سوال او ځواب- مباحثه- توضیح او تشریح.

**مرستندیه درسي توکي:** کتاب، تخته، تباشیر...

| وخت | فعالیتونه |
|---|---|
| ۵ دقیقې | - محترم ښوونکی دې له مقدماتي فعالیت وروسته تېر درس په څو پوښتنو سره وارزوي: د بېلګې په توګه<br>- څوک کولای شي و وایې چې توحید پر څو ډوله دی؟<br>- څوک کولای شي د ربوبیت د توحید په اړه یو نقلي دلیل وړاندې کړي. |
| ۲۵دقیقې | ښوونکی نوی سرلیک د تختې پرمخ لیکي او له یوه زده کوونکي څخه غواړي، چې درس د کتاب له مخې په مناسب آواز سره ولولي او وروسته ټولو زده کوونکو ته څو دقیقې وخت ورکوي، څو درس په خفیه ډول مطالعه کړي او په خپله په دې وخت د سورت کهف دیارلسم آیت پرتخته لیکي وروسته له مطالعې ښوونکی د درس اړونده ټول آیتونه په دقت سره قرائت او ترجمه کوي.<br>محترم ښوونکی له یوه زده کوونکي څخه غواړي، چې د درسي کتاب څخه په استفادې لاندې جانبي سرلیکونه د تختې په یو څنډه کې لیکي.<br>- د الوهیت تعریف<br>- د الوهیت توحید<br>- په عامه مانا عبادت<br>- د الوهیت د توحید د اثبات دلایل<br>محترم ښوونکی د جانبي سرلیکونو څخه په ګټې اخستنې سره زده کوونکو ته درس تشریح کوي او له څو |

| | |
|---|---|
| ۱۰ دقیقې | زده کوونکو غواړي ترڅو هر یو په خپل نوبت سره یو جانبي سرلیک تشریح کړي.<br>ښوونکی له یوه زده کوونکي څخه غواړي چې سورت بقرې اول آیت جز او د سورت اخلاص دوه لنډ آیتونه پرتخته ولیکي. وروسته له دوه زده کوونکو غواړي، چې د دواړو ترجمه د هغه لاندې ولیکي.<br>**لنډیز:**<br>دغه درس په لاندې ټکو کې خلاصه کیږي:<br>– د الوهیت مانا داده چې یوازې د الله تعالی ذات د عبادت او لمانځنې وړ دی او په عبودیت کې هیڅ شریک نه لري.<br>– د الوهیت توحید مسلمانانو ته امر کوي چې یوازې د الله تعالي عبادت وکړي او د هغه سره هېڅ شی مه شریکوی او د تعظیم سر هغه ته ټیټ کړئ او د هغه له اوامرو څخه پیروي وکړئ او له نواهیو څخه ډډه وکړئ.<br>– له عبادت نه موخه په عامه مانا دا ده چې بنده د ژوند په ټولو چارو کې د خپل پروردګار امر قبول کړي.<br>– د الوهیت د توحید د اثبات دلایل په قرآن کریم او نبوي احادیثو کې زیات دي د بېلګې په توګه د دغه درس نصوص.<br>**ارزونه:** ښوونکی دې له درسي کتاب څخه په پوښتنو سره زده کوونکي وارزوي. |
| ۵دقیقې | **کورنۍ دنده:** ښوونکی دې زده کوونکي د درسي کتاب د کورنۍ دندې په ترسره کولو مکلف کړي. |

**پنځم لوست:**

## سرلیک: د الله تعالی نومونه او صفتونه

**پاڼه: ۱۳**

**وخت:** (دوه درسي ساعتونه)

**موخې:** زده کوونکي باید:

۱- د الله ﷻ له نومونو سره بشپړه اشنايي پيدا کړي.

۲- د الله ﷻ د صفتي نومونو او صفاتو ترمنځ توپيرونه ووايي.

۳- د الله ﷻ د نومونو د ثبوت په دلايلو وپوهېږي.

۴- د الله ﷻ په نومونو د ايمان لرلو اهميت نورو ته ووايي.

**لازمي پوهه:**

مسلمانان د الله ﷻ په ښو او لوړو صفتونو باور لري. او هېڅ شی او يا څوک له الله ﷻ سره په دې کې نه شريکوي او هغه نه تاويلوي، مسلمان انسان الله ﷻ ته د هماغو نومونو او صفتونو نسبت کوي چې الله ﷻ يې خپل ځان ته نسبت کړی او پيغمبر په ډاګه کړي. الله ﷻ د خپلو صفاتو او نومونو په اړه فرمايلي: (وَلِلَّهِ الْأَسْمَاءُ الْحُسْنَى فَادْعُوهُ بِهَا وَذَرُوا الَّذِينَ يُلْحِدُونَ فِي أَسْمَائِهِ سَيُجْزَوْنَ مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ) الاعراف آية ۱۸۰.

ژباړه: (او ډېر ښه نومونه يوازې الله لره دي، نو دی په همدغو(نومونو) وبولئ او هغه کسان چې د الله په نومونو کې کوږوالی کوي، يوې خوا ته پرېږدئ، ژر به دوی ته د خپلو کړونو جزا ورکړله شي).

د قرآن کريم له ايتونو د الله ﷻ) ډېر صفتونه په ډاګه کېږي چې زموږ مسلمانانو لپاره يوازې همدومره لازم دي چې ايمان پرې ولرو له تاويل او توجيه يې ډډه وکړو او يا هغه څه چې فقهاوو او د عقايدو علماوو په ډاګه کړي، باور پرې وکړو او وېې منو، د بېلګې په ډول، امام مالک رحمة الله عليه پر عرش د رحمن د استوا په اړه وپوښتل شو، هغه وويل چې استوا معلوم او څرنګوالی يا کيفيت يې مجهول دی، او په اړه يې پوښتل ښه کار نه دی، او ايمان پرې لرل لازم دي. امام شافعي رحمة الله عليه فرمايي پر الله تعالی پر هغه څه چې د هغه له لوري راغلي او څه چې د هغه هدف وي، موږ ايمان لرو او هغه څه چې د هغه د رسول له لوري راغلي، او د هغه هدف په ډاګه کوي، هم باور لرو.

همدارنګه امام احمد رحمة الله عليه فرمايي، د الله ﷻ پر نومونو او صفتونو باور لرم، او په هغو ښه پوهېږم او د کيفيت او حقيقي معنا په اړه يې هېڅ کار نه لرم، په دې معنا چې پر عرش د هغه نازلېدلو، ليدل کېدلو او پر عرش کېښناستلو موږ ايمان لرو، خو پر عرش د هغه د کېښناستو او ليدل کېدو د کيفيت په اړه نه پوهېږو، چې يوازې او يوازې پرې الله ﷻ پوهېږي.

او د استازي (رسول) ويناوې يې نه ردوو او تر هغه زيات پکې څه نه شو ويلی، چې الله ﷻ او د هغه پيغمبر توصيف او فرمايلي دي، نومونو او صفاتو ته يې حد نه شو ټاکلی او ښه پوهېږو چې هېڅ شی له الله ﷻ سره ورته والی نه لري، او هغه اورېدونکی او ليدونکی دی. «لَيْسَ كَمِثْلِهِ شَيْءٌ وَهُوَ السَّمِيعُ الْبَصِيرُ»

ژباړه: (هېڅ شی د الله په څېر نه دی، هغه (الله) اورېدونکی او ليدونکی دی.)

الله ﷻ د ښو نومو او صفاتو څښتن دی، پرموږ مسلمانانو دا فرض عين دی چې د الله ﷻ په نومونو او صفاتو ايمان ولرو، د قرآن کريم ګڼو اياتونو او نبوي احاديثو موږ ته د الله ﷻ ډېر نومونه او صفتونه راښودلي دي، دغه اشنايي او ښودنه ددې سبب کېږي چې د الله ﷻ کما حقه عبادت او بندګي وکړو او په ټولو چارو کې هغه ﷻ ذات ته رجوع وکړو.

بندګانو ته لازمه ده الله ﷻ په هماغو نومونو او صفاتو ياد کړي چې پخپله الله ﷻ دغه نومونه او صفتونه په قرآن کريم کې ذکر کړي، له دې کبله بندګانو ته دا روا نه ده چې الله ﷻ ته هغه صفتونه او نومونه وضع کړي چې هغه ﷻ خپل ځان ته نه

دي ټاکلي او يا رسول اللهﷺ خپل رب نه دی ورباندې ستايلی، ځکه چې د اللهﷻ لپاره د دا ډول نومونو وضع کول د هغه له عظمت او لويی سره نه ښايي او نه هم د بندګۍ اداب دا تقاضا لري.

بناءاً، د الله تعالىﷻ د نومونو او صفاتو په اړه د اهل سنت او جماعت عقيده دا ده چې الله تعالى ښه صفات لري، چې د هغه ازلي صفات او نومونه د هغه د لوړ شان او شوکت سره ښايي، او اللهﷻ پخپلو نومونو او صفاتو کې هېڅ شريک او مثل نه لري.

د اللهﷻ ټول نومونه او صفتونه توقيفي دي، په دې معنا چې په هغو نومونو او صفاتو چې اللهﷻ په قرآن کريم او نبوي احاديثو کې ستايل شوی دی، اللهﷻ په همدې صفاتو او نومونو سره يادېږي، او هېچا ته روا نه ده چې له خپل ځانه اللهﷻ ته نوم يا صفت وضع کړي.

لکه داسې چې د اللهﷻ ته د (صانع) الله د مهندس الکون الاعظم خطاب وشي، يا کوم بل صفت، الله تعالى اسم اعظم دی او د الله نور ټول نومونه صفتي نومونه دي، لکه عليم، حليم، رحمن، رحيم او داسې نور.

اللهﷻ د خپلو نومونو په اړه د الاعراف سورت په ۱۸۰ ايت کې داسې فرمايلي دي: «وَلِلَّهِ الْأَسْمَاءُ الْحُسْنَى فَادْعُوهُ بِهَا وَذَرُوا الَّذِينَ يُلْحِدُونَ فِي أَسْمَائِهِ سَيُجْزَوْنَ مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ»

ژباړه: (او ډېر ښه نومونه يوازې الله لره دي، نو دی په همدغو(نومونو) وبولئ او هغه کسان چې د الله په نومونو کې کوږوالی کوي، يوې خوا ته پرېږدئ، ژر به دوی ته د خپلو کړونو جزا ورکړله شي).

اللهﷻ په ښو نومونو ياد کړي. د الله تعالى د نومونو په اړه بې لارې کېدل (ګمراهي) په دې معنا دي چې د الله تعالى لپاره داسې نوم وټاکي چې د اسلام له اصولو او هدف سره په ټکر کې وي، او د هغه له لويی او اجلال سره مناسب نه وي، او يا دا چې د الله تعالى نوم غيرالله ته وټاکي او يا دا چې د اللهﷻ نوم له کوم مورد او له اصولو ليرې تأويل کړي.

**د تدريس ميتود:** پوښتنه او ځواب، توضيح، تشريح او مسابقه

**مرستندويه درسي مواد: کتاب، کتابچه، تخته او تباشير**

| وخت | فعاليتونه |
|---|---|
| ۵ دقيقې | – محترم ښوونکی ورروسته له مقدماتي موضوعاتو د څو پوښتنو په طرح کولو سره تېر درس ارزوي.<br>– څوک کولای شي د توحيد الوهيت تعريف کړي؟<br>– څوک کولای شي طاغوت تشريح کړي؟<br>– څوک کولای شي چې ووايي د توحيد الوهيت حکم څه دی؟<br>محترم ښوونکی ورروسته له ځوابونو د نوي درس سرليک په تخته ليکي. |
| ۲۵دقيقې | محترم ښوونکی د درس متن د يو زده کوونکي لخوا لولي او خپله د قرآني نصوص په دقت سره ترجمه او هغه زده کوونکي ته وايي.<br>محترم ښوونکی زده کوونکو ته هدايت کوي ترڅو درس په پټه خوله مطالعه کړي.<br>محترم ښوونکی له دوه زده کوونکو غواړي ترڅو له لاندې جانبي عناوينو څخه يو له مخې ولولي او بل د هغه پرتخته وليکي.<br>– د اسماء او صفات تعريف<br>– د الله ج د اسماء قسمونه<br>– د الله تعالي د صفاتو او صفتي نومونو ترمنځ فرق<br>د الله تعالي د نومونه د ثبوت دلايل<br>د الله تعالي په اسماء ايمان لرل |

| | |
|---|---|
| | – د الله تعالي د اسماء او صفات په اړه د اهل سنت او جماعت کړه وړه<br>محترم ښوونکي د زده کوونکو توجه ځانته جلبوي د جانبي عناوينو څخه په ګټې اخستنې سره زده کوونکو ته درس تشريح کوي او وروسته زده کوونکو ته څو دقيقې وخت ورکوي ترڅو د درس په اړه خپلو کې بحث وکړي او پدې وخت کې خپله صنف کنټرولوي او د زده کوونکو بحث ته متوجه وي او د هغو اشتباهات د اصلاح لپاره د خپل ځان سره يادښت کوي. |
| ۱۰دقيقې | **خلاصه:**<br>دغه درس په لاندې ټکو کې خلاصه کيږي:<br>– په اجمالي ډول د الله تعالي پر ټول نومونه باندې باور لرل د اسلامي عقيدې جز دی.<br>– الله تعالي اسماء په هغه الفاظو اطلاقيږي چې په قرآن کريم او نبوي احاديثو کې ذکر شوي او په عين حال کې د خداي په ذات دلالت وکړي.<br>– الله تعالی صفتي اسماء د الله تعالي د صفات سره په مانا او عدد کې فرق لري<br>– د الله تعالی د اسماء د ثبوت لپاره ډېر دلايل په قرآن کريم او احاديثو کې ذکر شوي دي د مثال په ډول: (وَلِلّٰهِ الاسْمَاءُ الحُسنى فادعُوهُ بِهَا)<br>– اهل سنت او جماعت د الله تعالی اسماء په خپل عقل سره ډول تعطيل او تحريف نه کوي او د هغه مثال ورته نه بيانوي او د هغه د کيفيت په اړه بحث نه کوي.<br>**ارزونه:**<br>محترم ښوونکی له درسي کتاب څخه په پوښتنو سره زده کوونکي ارزوي |
| ۵دقيقې | **کورنی دنده:**<br>محترم ښوونکی زده کوونکو ته دنده ورکوي ترڅو له قرآن کريم په استفادې سره په خپلو کتابچو کې لس آيتونه وليکي چې په هغه کې د الله تعالي نومونه ذکر شوي وي. |

شپږم لوست:

## سرلیک: د الله تعالی صفتونه

**پانه:۱۷**

**وخت:** (دوه درسي ساعتونه)

**موخې:** زده کوونکي باید:

- د الله تعالیﷻ د نومونو شمېر معلوم وي.
- د اللهﷻ په نومونو او صفاتو د ایمان لرلو ګټې ووایي
- د اللهﷻ د صفاتو په ډولونو پوی وي او اهمیت یې نورو ته ووایي.

**لازمي پوهه:**

د اللهﷻ ځینې صفتونه لکه: (حیات، علم، قدرت، بصر، سمع، خبرې اراده او داسې نور) داسې ذاتي صفتونه دي چې پرضد یې الله تعالی نه موصوفېږي، د لسم ټولګي په درسي کتاب کې د الله تعالی د ذاتي صفاتو تر سرلیک لاندې د یادو شوو صفاتو په اړه کافي معلومات وړاندې شوي دي، خو دلته په ځانګړې توګه د ذاتي صفاتو ځینې عقلي دلایل وړاندې کېږي.

**حیات:**

اللهﷻ ژوندی دی، یعنې د حیات په صفت ستایل شوی، چې ضد یې مرګ دی. حیات ازلي صفت دی. چې د الله تعالی پر ذات پورې قایم دی؛ ځکه که چېرې اللهﷻ د حیات څښتن نه وي، د نورو ټولو صفاتو لرلو وړتیا به یې نه لرله. همداسې، که چېرې خالق ژوندی نه وي، هغه ته د نورو صفاتو نسبت سم نه دی، داسې به نه شوای کېدای چې یو پای مونږدونکی خالق دې نور مخلقو پیدا کړي. نو دا ثابته شوه چې الله تعالی حی (ژوندی) دی، او د حیات صفت ورته شوی، چې اللهﷻ پخپله په دې اړه وایي: { اللّهُ لاَ إِلَهَ إِلاَّ هُوَ الْحَيُّ الْقَيُّومُ[1]} ژباړه: (الله (چې دی) له هغه څه پرته بل کوم معبود نشته، ژوندی، تلپاتې، همېشه قایم د بشپړ تدبیر څښتن دی.)

**علیم:**

اللهﷻ ته د علم نسبت شوی، او علم یعنې پر معلوم څیز احاطه لرل، چې ضد یې جهل (ناپوهي) ده، علم یو ازلي صفت دی، چې د الله تعالی پر حق ذت پورې قایم دی، چې په دې سره ټول څیزونه واجب، جایز او ناممکن څیزونه هغه ته معلومېږي، داسې نه شي کېدی چې یو دغه عالم دې یوڅوک پیدا کړي چې په دقت او منظم ډول یې په اړه علم ونه لري. ځکه څوک چې د یوه څیز په اړه جاهل وي، ناممکنه ده چې هغه دې سم کړای شي، مثلاً، یوڅوک چې په ترکاڼۍ نه پوهېږي، د صندلۍ په جوړولو نه پوهېږي، اللهﷻددې صفت په اړه فرمايي: (يَعْلَمُ مَا بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ) ([2])

ژباړه: (پر هر هغه څه چې د دوی (بندګانو) په مخکې دي او (یایې) شاته پرېښي دي، پوهېږي.) پر هغه څه پوهېږي چې د هغوی پر دنیا او اخرت پورې اړه لري.

بل ځای فرمایي: (يَعْلَمُ سِرَّكُمْ وَجَهرَكُمْ) ژباړه: (الله تعالی پر ټولو پټو او ښکاره څیزونو پوهېږي.)

او بل ځای فرمايي: (وَمَا تَسْقُطُ من وَرَقَةٍ إِلاَّ يَعْلَمُهَا) ([3]). ژباړه: (او هېڅ یوه پاڼه نه لوېږي خو الله پرې پوهېږي.)

ابوبکرؓ روایت کوي چې رسول الله ته مې وویل: اې د الله رسوله، داسې څه راته وښیه چې سهار او ماښام یې ووایم، هغه وویل، ووایه: (قُلِ اللَّهُمَّ فَاطِرَ السَّمَوَاتِ وَالأَرْضِ عَالِمَ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ رَبَّ كُلِّ شَىْءٍ وَمَلِيكَهُ أَشْهَدُ أَنْ لاَ إِلَهَ إِلاَّ أَنْتَ أَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّ نَفْسِي وَشَرِّ

---

[1]- بقره ۲۵۵

[2] - بقره ۲۵۵.

[3] - انعام آیه ۵۹

الشَّيْطَانِ وَشِرْكِهِ). ([1])

يعني اې د اسمانونو او ځمکې پيدا کوونيه، پر غيب او ښکاره ټولو عالم ذاته، د هرې هستۍ ربّ او څښتنه، د خپل ځــان او شيطان له او د شرک آميزه وسوسو څخه تاته پناه دروړم.

**مريد: (اراده لرونکی):**

الله تعالى د ارادې په صفت موصوف دی، چې د اکراه او اهمال ضد دی، اراده يو ازلي صفت دی، چې د الله تعالى پر ذات پورې قايم دی، او په مټ يې هر هغه چې د هغه لپاره جايز دی، تعيينيږي، اراده هم لکه د قدرت په څېر پر ممکناتو پورې اړه لري.

الله تعالى د نړۍ له موجوديت مخکې موجود و، او د هغه په اراده او اختيار نړۍ منځته راغلې ده (له دې کبله د الله او نــړۍ تــرمنځ اړيکــه د علت او معلول ضروري اړيکه نه ده، بلکې پخپل کار کې د يوه خودمختاره فاعل اړيکه ده) قرآن کريم پــه دې اړه د الاســرى ســورت پــه ۱۶ ايت کې فرمايلي: (وَإِذَا أَرَدْنَا أَنْ نُهْلِكَ قَرْيَةً أَمَرْنَا مُتْرَفِيهَا فَفَسَقُوا فِيهَا فَحَقَّ عَلَيْهَا الْقَوْلُ فَدَمَّرْنَاهَا تَدْمِيرًا) ([2])

ژباړه: (او کله چې وغواړو کومه سيمه تباه کړو، د هغې بډایانو ته امر کوو چې په نافرمانۍ لاس پورې کړي، نو پر هغه ځای د تباهۍ حکم عملي کېږي او موږ هغوی (په سخته توګه) هلاکوو.)

بل ځای فرمايي: (إِنَّ اللَّهَ يَفْعَلُ مَا يُرِيدُ) ([3]).ژباړه: (الله چې هرڅه وغواړي، هغه کوي.)

د الله رسول هم د ارادې نسبت الله ته کړی دی، چې فرمايي: (من يرد الله به خيراً يفقهه فى الدين ويلهيمه رشده) الله چــې د هرچا لپاره خير او نيکي وغواړي، هغه د دين پر احکامو پوهوي او هغه ته د دنيا د خير او ښېګڼې الهام کوي.

**د تدريس ميتود:** پوښتنه او ځواب: تشريحي، مباحثه او مسابقه

**مرستندويه درسي مواد:** کتاب،کتابچه، تخته او تباشير.

| وخت | فعاليتونه |
|---|---|
| ۵ دقيقې | – محترم ښوونکی له مقدماتي موضوعاتو وروسته د خپل اطمنان په خاطر د څو پوښتنو سره تېر درس ارزوي د مثال په ډول:<br>– څوک کولای شي د الله تعالى اسماء او صفات تعريف کړي؟<br>څوک کولای شي ووايي د الله تعالى اسماء په څو ډوله دي؟<br>وروسته د ځوابونو څخه محترم ښوونکی د نوي درس سرليک (د الله تعالى صفتونه) پرتخته ليکي. |
| ۲۵دقيقې | محترم ښوونکی د زده کوونکو توجه خپلو کتابونو ته اړوي او درس د اول سطر څخه تر (د الله تعــالى پــر اسماء او صفاتو د ايمان لرلو ګټې) سرليک پورې وايي او پاتې درس د يو ممتاز زده کوونکي لخوا لولي.<br>محترم ښوونکی زده کوونکو ته څو دقيقې وخت ورکوي ترڅو درس په پټه خوله ډول مطالعه کړي او خپلــه د ټولګې د نظم ته متوجه وي، که چېرې د زده کوونکو لخوا پوښتنې مطرح کېږي، ځواب ورته وايي.<br>محترم ښوونکی د الله تعالي د واردو شويو اسماء په اړه مبارک حديث د ټولګي پر تخته وليکــي او لــه دوه زده کوونکو غواړي ترڅو تختې ته راشي او د يو بل په مرسته سره د هغه ترجمه وليکي.<br>وروسته له يو زده کوونکي غواړي ترڅو لاندې جانبي عناوين د کتاب له مخې پر تخته وليکي.<br>– د الله تعالى د اسماء شمېر<br>– د الله تعالى پر اسماء د ايمان لرلو ګټې |

[1] – السنن أبي داود– باب مايقول إذا أصبح الجزء۴ – المخ ۴۷۶۰.
[2] – سورة اسرأ آيه ۱۶.
[3] – سورة الحج آيه ۱۴.

– د الله تعالی د صفاتو ډولونه

محترم ښوونکی د درس له جانبي عناوینو په ګټې اخیستنې زده کوونکو ته درس تشریح کړي او پـر ځینـو مهمو نکاتو ډېر ترکیز وکړي.

محترم ښوونکی د درس نصوص د ځو زده کوونکو لخوا قرائت کوي

محترم ښوونکی له ځو زده کوونکو غواړي ترځو هریو په خپل نوبت سره یو سرلیک درس تشریح کړي.

وروسته محترم ښوونکی ټولګي په ډېره آرامي سره په څلورو ګروپونو سره وېشي او هر ګروپ تـه وظیفـه ورکوي ترڅو د درس د مفاهیمو په اړه خپل منځ کې بحث وکړي او د خپل بحث نتایج د وړانـدې کولـو لپاره د ټولګي مخکې ولیکي.

**خلاصه:**

دغه درس په لاندې ټکو خلاصه کیږي.

– د الله تعالی د اسماء تعداد په قرآن کریم او احادیثو کې ذکر شوي د مثال په ډول د سورت الحـشر ۲۲ آیت څخه ۲۴ آیت پورې

۱۰دقیقې

– د خدای رسول فرمایلي د الله تعالی لپاره نهه نوي نومونه دي هرڅوک چې دغه نومونه حفظ کړي جنت ته ځي.

– هرڅوک چې د الله تعالی اسماء او صفاتو سره ډېر معرفت ولري او همغه اندازه د هغه ایمان ســختیږي او په وجود کې یې د توحید عقیده محکمیږي.

– د الله تعالی صفاد پر دوه ډوله دي: ذاتي او فعلي

– د الله تعالی ذاتي صفات هغه صفات دي چې خدای منان د هغه پر ضد نه متصف کیږي لکه سمع، بـصر، علم، اراده، حیات، کلام، قدرت. او فعلي صفات هغه صفتونه دي چې الله تعالی د هغه پر ضد متصف کېږي کله تخلیق، ترزیق، احیا، اغزاز او غیره.

۵ دقیقې

**ارزونه:**

محترم ښوونکي د درسي کتاب څخه په پوښتنو سره زده کوونکي ارزوي. او که چېرې کومه پوښـتنه بـې ځوابه پاتې وي هغه ته ځواب وایي.

**کورنۍ دنده:**

محترم ښوونکي زده کوونکو ته دنده ورکوي ترڅو د الله تعالی د اسماء او صفاتو په اړه دوه کرښې مقاله ولیکي.

اووم لوست:

## سرلیک: د الله تعالی ذاتي صفتونه (قدرت او اراده)

**پاڼه: ۲۱**

**وخت:** (دوه درسي ساعتونه)

**موخې:** زده کوونکي باید:

- د قدرت د اثبات د صفت په دلایلو سم پوی شي.
- د ارادې د اثبات دلایل وویلی شي.
- د الله تعالی د ارادې په صفت د ایمان په حکمت پوی شي.
- د نورو ته د ارادې د اهمیت ډولونه ورسوي.

**لازمي پوهه:**

**قادر:**

قدرت د الله ازلي صفت دی او الله ﷻ د قدرت په صفت ستایل شوی، چې د عجز ضد دی. نو الله تعالی قادر دی او قدرت د هغه ازلي صفت دی چې د هغه پر ذات قایم دی، چې د الله تعالی حق پر هغو پدیدو پورې معدوم ګرځوي او پر ممکناتو پورې تړاو پیدا کوي.

ددې نړۍ په پیدایښت او په نړۍ کې د عجیبو او لویو موجوداتو لکه حیوان، نبات او معادنو ډولونه چې عقل او افکار یې په سوچ کې ورکېږي، دا ټول د الله تعالی په وجود دلالت کوي، چې له هر ډول نیمګړتیا پاک دی، نو چې داسې ده بیا دا ممکنه ده چې ددا ډول لویو څیزونو جوړول د قدرت فاقد وي، هېڅ سالم عقل دا باور کولی نه شي چې دغه نړۍ دغه ستوري چې هر یو یې پخپل ډول کې بې مثیله لوی دی، یوه ناتوانه او بې قدرته ذات دې جوړ کړي وی، ځکه چې ناتوان نه شي کولی چې د خپل ځان غم وخوړلی شي، دا خو پرېږده چې د نورو غم دې وخوړلی شي، په قرآن کریم کې د الله تعالی د قدرت دلایل ډېر زیات دي، چې مونږ یې په یوه دوو دلایلو بسنه کوو، الله تعالی په بقره سورت کې فرمايي:

(أَنَّ الْقُوَّةَ لِلّهِ جَمِيعاً) او په الملک سورت کې فرمايي: (وهو علی کل شی قدیر):

ابي امامه وايي چې د الله رسول ډېره دعا وکړه او ما و نه کړای شو چې له هغه څخه یوڅه یاد کړم، ورته ومې ویل اې د الله رسوله، ډېره دعا دې وکړه، خو ما ترې هېڅ هم یاد نه کړل، راته وویل: ایا تا ته دداسې څه لارښوونه وکړم، چې دې ټولو ته شامل وي، ومې ویل هو، راته وویل: ووایه:

(اللهم انی اسئلک من خیر ماسألک منه نبیک محمدﷺ وانت المستعان وعلیک البلاغُ ولاحول ولاقوة الا باالله)

یعنې اې لویه خدایه، له تا څخه هغه خیر او برکت غواړم چې ستا رسول محمد له تا غوښتی دی، او د هغه څه له شر څخه تاته پنا وړم، چې ستا رسول محمدﷺ تاته پنا وړې ده، یوازې له تا مرسته غوښتل کېږي او ستا پرغاړه د رسالت (تبلیغ) دی، او له تا پرته هېڅ قدرت او واک نشته.

دغه حدیث ترمذي روایت کړی او حسن یې بللی دی.

**د تدریس میتود:** پوښتنه، ځواب، مباحثه، تشریح او ډله

**درسي مواد:** درسی کتاب، تخته او تباشیر

| وخت | فعالیتونه |
|---|---|
| ۵ دقیقې | - محترم ښوونکي د مقدماتي موضوعاتو څخه وروسته د خپل اطمینان لپاره تیر درس په څو پوښتنو سره ارزوي د مثال په ډول:<br>– څوک کولای چې هغه حدیث چې هغه د الله تعالی د اسماء اړه وارد شوي ولولي؟<br>– څوک کولای شي د الله تعالی ذاتي صفات تعریف کړي؟<br>محترم ښوونکي د ځوابونو د آوریدلو څخه وروسته د نوي درس سرلیک د یو شاکرد په واسط په تخته لیکي.<br>ښوونکي د زده کوونکو توجه د خپلو کتابونو ته اړوي او یوازي د درس نصوص په ډېر دقت سره قرائت کوي. |
| ۲۵دقیقې | محترم ښوونکي زده کوونکو ته څو دقیقې وخت ورکوي ترڅو درس په خفیه ډول ترسره کړي.<br>محترم ښوونکي د یو زده کوونکي څخه غواړي چې لاندې جانبي عناوین پر تخته ولیکي.<br>– د قدرت تعریف – د الله تعالی په قدرتي صفت ایمان لرل – د ارادې تعریف – د ارادې د اثبات دلایل<br>– عقلی دلیل– د ارادې ډولونه<br>محترم ښوونکي د زده کوونکو توجه ځانته اړوي د جانبي عناوینو څخه په ګټې اخیستنې سره درس زده کوونکو ته تشریح کوي او پرځینو ټکو باندې ډېر ترکیز کوي.<br>محترم ښوونکي له څو زده کوونکو چې کم علاقه ښکاري غواړي ترڅو هریو په خپل نوبت سره یو سرلیک درس تشریح کړي پدې وخت محترم ښوونکي د زده کوونکو سره ډېره مرسته کوي.<br>محترم ښوونکي زده کوونکي په دوه ګروپونو تقسیموي او له دوی غواړي ترڅو له یو او بل څخه د درس اړونده پوښتنې وکړي او خپله د صنف کنترول کوي او صحیح او غلط ځوابونه د ځان سره د اصلاح لپاره یاداشت کوي. |
| ۱۰ دقیقې | **خلاصه:** دغه درس په لاندې ټکو کې خلاصه کیږي:<br>– قدرت عبارت له هغه صفت څخه دی چې د هغه په وسیله هر ژوندی موجود کولای شي د خپلې ارادې سره موافق خپل کار سرته ورسوي او یا یې ترک کړي.<br>– قدرت د الله تعالی ذاتي صفت دي او اړونده صفت د الله تعالی لپاره حادث ندی بلکې ازلي او ابدي دی.<br>– د الله تعالی قدرتي صفت په ډېرو آیاتونو سره ثابت شوي دي د مثال په ډول (انّ الله علی کل شئ قدیر).<br>– اراده دې ته وایي چې د یوه کار ترسره کولو او یا پرېښودلو د هدف لپاره یو کار ترسره شي، لکه د یوه کار ګټه یا زیان.<br>– عقلي دلیل، که چېرې د الله اراده بل څه وي، له هغه څخه د قدرت صفت سلب شي، نو عقل هم په دې باور دی چې الله تعالی اراده لري او هرڅه چې وغواړي، هماغه کیږي.<br>– د الله تعالی د ارادې په صفت او قدرت ایمان لرل فرض دي<br>– د اهل سنت او جماعت له لیدلوري، اراده په دوه ډوله ده:<br>۱ – تکویني او خلقي اراده ۲ – دیني او شرعي اراده.<br>**ارزونه:** محترم ښوونکی دې د درسي کتاب له پوښتنو څخه په ګټې اخیستو سره خپل زده کوونکي وارزوي. |
| ۵دقیقې | **کورنۍ دنده:** محترم ښوونکي زده کوونکي د درسي کتاب په کورنۍ دنده مکلف کوي. |

اتم لوست:

## سرلیک: د الله تعالی ذاتي صفات (سمع، بصر، علم اوحیات)

**پانه: ۲۴**

**وخت:** (دوه درسي ساعتونه)

**موخې:** زده کوونکي باید:

- د الله تعالی په ذاتي صفتونو سم پوی شي.
- د علم د صفت د اثبات دلایل روښانه کړي.
- د یادو شوو صفاتو په ایمان لرلو پوی شي.
- د ذاتي صفت اهمیت نورو ته ورسوي.

**لازمي پوهه:**

**سمیع وبصیر:**

الله تعالی سمیع او بصیر دی، چې دا د کوڼ او ړانده ضد دي.

لیدل او اورېدل دواړه ازلي صفتونه دي، چې د الله تعالی په حق ذات پورې قایم دي، او له هېڅ واسطې او سبب پرته هرڅه ویني او اوري، الله تعالی پخپله فرمایلي: (وهوالسمیع البصیر) آیه ۱۱ د شوری سورت.

ژباړه: (او هغه اورېدونکی او لیدونکی دی) او دا هم ناممکنه ده هغه ذات چې نورو ته د لیدو او اورېدو (سمع او بصر) وړتیا ورکوي، پخپله دا وړتیا ونه لري.

همدارنگه له اورېدو او لیدلو پرته په نړۍ پوهېدل ناممکن دي، که نعوذ بالله الله تعالی دغه دواړه صفتونه نه درلودی، نو د کایناتو ښکلی نظام او تدبیر به گډوډ شوی وای. وینو چې حضرت ابراهیم عليه السلام خپل پلار ته وایي چې: (دغه ماجرا د مریم سورت ۴۲ ایت په ډاګه کړې ده) «إِذْ قَالَ لِأَبِيهِ يَا أَبَتِ لِمَ تَعْبُدُ مَا لَا يَسْمَعُ وَلَا يُبْصِرُ وَلَا يُغْنِي عَنْكَ شَيْئًا».

(اې پلاره! ولې د هغه څه عبادت کوې، چې نه اوري او نه ویني او نه ستا کومه ستونزه حل کوي؟)

دا چې حضرت ابراهیم عليه السلام خپل پلار ته دا نه غوښتل چې د هغه څه عبادت وکړي، چې نه اوري او نه ویني، دلیل یې دا دی چې خالق باید دغه صفتونه ولري.

**د تدریس میتود:** سوال اوځواب، مباحثه، توضیحي اوتشریحي خبرې

**مرستندیه درسي توکي:** کتاب، تخته، تباشیر...

د لوست جریان:

| وخت | فعالیتونه |
|---|---|
| ۵دقیقې | محترم ښوونکي د مقدماتي موضوعاتو وروسته تیر درس په لاندې پوښتنو سره ارزوي:<br>– قدرت په څو ځیزونو اطلاقیږي؟<br>– د قدرت پر صفت ایمان راوړل څه حکم لري؟<br>– د الله تعالی اراده په څو ډوله ده؟<br>محترم ښوونکي د ځوابونو د آوریدو وروسته  د نوي درس سرلیک د یو زده کوونکي په واسطه لیکي. |
| ۲۵ دقیقې | محترم ښوونکي د درس هر پاراګراف د یو زده کوونکي لخوا په مناسب آواز سره لولي او محترم ښوونکي د زده کوونکو لخوا د نصوصو په لوستلو کې ډېر دقت کوي او که چیرته مشکل ولري هغه خپله حلوي.<br>محترم ښوونکي له دوه زده کوونکو غواړي ترڅو د لاندې  جانبي عناوینو څخه یو د کتاب له مخې ولولي او نور یې ولیکي:<br>– د سمع تعریف – بصر(بینایي) – سمع او بصر د اثبات دلایل  – د علم تعریف  – د حیات تعریف<br>–  دعلم او حیات د صفت د اثبات دلایل – په یادو صفتونو ایمان لرل<br>محترم ښوونکي  له عناوینو څخه په استفادې درس په شوق سره تشریح کوي او د تشریح په جریان کې د ځینو زده کوونکو دقت او توجه اړولو لپاره مخاطب ګرځوي.<br>وروسته محترم ښوونکي له څو زده کوونکو چې نن یې نوبت دي غواړي ترڅو هر یو په خپل نوبت سره یو سرلیک تشریح کوي.<br>محترم ښوونکي زده کوونکو ته څو محدودې دقیقې وخت ورکوي ترڅو خپل منځ کې د درس په اړه بحث وکړي او که اختلاف پیدا کیږي په ډېره حوصله سره هغه حلوي. |
| ۱۰ دقیقې | **خلاصه:** دغه درس په لاندې ټکو کې خلاصه کیږي:<br>– سمع عبارت له هغه قوې څخه ده چې هغې په وسیله ټول غږونه آوریدل کیږي.<br>– الله تعالی ټول غږونه او کلمات په خپل ازلي صفت سره آوري او له الله تعالی څخه هیڅ آواز نشي پټیدلای.<br>بصر عبارت له یوې قوې څخه دی چې په سترګو کې وجود لري او د هغې په وسیله شکلونه، رنګونه، رڼاوې او تیارې او نورویني.<br>– بصر د الله تعالی ذاتي صفت دی او الله تعالی ټول واړه او لوی شیان په خپل ازلي صفت سر ویني.<br>– علم هغه پوهې ته ویل کیږي چې پر واقعت ولاړه وي.<br>– علم د الله تعالی ذاتي صفت دی، الله تعالی په ټوله هستۍ پوه دی او الله تعالی پر هرڅه علم لري.<br>– د الله تعالی د دغه ذاتي صفاتو لپاره قرآني دلایل موجود دي. چې مثال یې دغه ایت دی: (إنّ الله سمیعٌ بصیر) (إنّ الله علیمٌ بذات الصّدور) (اللهُ لا إله إلاّ هو الحيُّ القیّوم). د الله تعالی په ټولو ذاتي صفتونو  ایمان لرل فرض دي<br>**ارزونه:**  محترم ښوونکي زده کوونکي د درسي کتاب د پوښتنو له لارې ارزوي. |
| ۵دقیقې | **کورنۍ دنده:** محترم ښوونکي زده کوونکي د درسي کتاب په کورنۍ دندې مکلف ګرځوي. |

نهم لوست:

## سرلیک: د الله تعالی د کلام صفت

**پانه:۲۷**

**وخت:** (دوه درسي ساعتونه)

**موخې:** زده کوونکي باید:

- د کلام تعریف او د کلام د صفت د اثبات دلایل ښه وپېژني.
- د کلام په صفت ایمان لرل په ډاګه کړي.
- په قرآن کریم ایمان لرل روښانه کړي.
- د قرآن کریم د نومونو اهمیت نورو ته ورسوي.

**لازمي پوهه:**

کلام د الله جل جلاله ازلي صفت دی، چې د هغه په ذات پورې قایم او قدیم دی، او کلام پر هغه څه دلالت کوي چې لفظـي اثــر ولري، چې د ګونګ د صفت ضد دی، او هېڅکله دا وروستی صفت الله تعالی ته نه منسوبیږي. دلیل یې د نـساء ســورت ۱۶۴ ایت دی، چې الله تعالی فرمایي: «وَكَلَّمَ اللَّهُ مُوسَى تَكْلِيمًا» ژباړه: (او الله تعالی له موسی سره داسې خبرې کــړې دي، لکه چې خبرې کېږي.)

الله تعالی چې هرکله وغواړي، د هغه له شان او شوکت سره مناسب د پرښتو په مټ د وحي له لارې خپلو پیغمبرانو ته خپلې خبرې اوروي، لکه څنګه چې په معراج کې له حضرت محمدﷺ سره او په طور غره کې، له حضرت موسی علیه السلام سره یې خبرې وکړې، د نورو معلوماتو لپاره ددغه سورت ۴۷-۱۰ ایتونو ته مراجعه وکړئ.

**د تدریس میتود:** پوښتنه او ځواب: تشریحي، مسابقه

**مرستندیه درسي توکي:** کتاب، تخته، تباشیر...

**د لوست جریان:**

| وخت | فعالیتونه |
|---|---|
| ۵ دقیقې | - محترم ښوونکي د مقدماتي موضوعاتو څخه وروسته د دغه سوالو په مطرح کولو سره تیر درس ارزوي:<br>- څوک کولای شي سمع، بصر، علم او حیات صفتونه تعریف کړي؟<br>- څوک کولای شي وواېي خدای د خپل کوم صفت پرضد نشي متصف کیدلای؟<br>څوک کولای شي د الله تعالي د حیات صفت د اثبات یو دلیل بیان کړي؟<br>وروسته محترم ښوونکي د نوي درس سرلیک پرتخته لیکي او له زده کوونکو غواړي چې کلام د الله تعالي له کومو صفتونو څخه دی؟ د ځوابونو څخه وروسته زده کوونکو ته څو دقیقې وخت ورکوي ترڅـو درس پــه خفیانه ډول سره مطالعه کړي او خپل پدې وخت د قرآن کري دوه یا دری نصه چې په هغه کې د الله تعالي د کلام صفت ثابت شویدي د تختې پرمخ لیکي. |
| ۲۵دقیقې | وروسته له یو زده کوونکي غواړي ترڅو نصوص د تختې له مخې ولولي او وروسته خپله نصوص تحت لفظې ترجمه کړي.<br>محترم ښوونکي له یوه زده کوونکي غواړي ترڅو لاندې عناوین پرتخته ولیکي.<br>- دکلام تعریف<br>- د کلام د صفت د اثبات دلایل |

| | |
|---|---|
| – قرآن کریم د الله تعالی کلام دی<br>– د قرآن کریم تعریف<br>– د قرآن کریم نومونه<br>محترم ښوونکي د زده کوونکو توجه ځانته جلبوي د جانبي عناوینو څخه په استفادې درس زده کوونکو تـــه تشریح کوي.<br>وروسته له څو زده کوونکو غواړي ترڅو هر یو په خپل نوبت سره یو سرلیک تشریح کړي.<br>محترم ښوونکي زده کوونکي پر دوه ډلو تقسیموي او هغوی ته وظیفه ورکوي ترڅو د کـــلام صـــفت او د قران کریم نومونو په خپلو کې بحث وکړي او خپله پدې وخت کې صنف کنترولـــوي او د زده کوونکـــو د بحث ته متوجه اوسي.<br>وروسته له فعالیته د بحث نتایج د ګروپونو د استازو لخوا د ټولګي مخ کې وړاندي کیږي. | ۱۰ دقیقې |
| **خلاصه:** دغه درس په لاندې ټکو کې خلاصه کیږي:<br>– کلام هغه خبرو ته وایي چې د حروفو او اصواتو څخه مرکب وي خو دلته د کلام څخه مراد د الله تعـــالی ذاتي صفت دی چې له مخکې د هغه لپاره ثابت دی او دغه کلام ته نفس هم وایي.<br>– د الله تعالي د کلام صفت په دغه آیت مبارک کې ثابت دی (وَكلمَ اللهُ مُوسى تَكلِيمًا)<br>– د اللهﷻ پر کلام ایمان او باور لرل واجب دی.<br>– د قرآن کلمه مصدر دی چې د یوځای کولو او تلاوت کولو په مانا دی.<br>– قرآن په اصطلاح کې د الله تعالی کلام دي چې په عربي ژبه پر حضرت محمدﷺ نازل شوی دی او پـــه صـــحیفو لیکل شوی او موږ ته په تواتر ډول بغیر له شبهې نقل شوی دی.<br>– پردې چې قرآن کریم کلام الله تعالی دی او قایم په ذات حق تعالی دی یقین او باور لرل واجب دي.<br>– د قرآن کریم لپاره متعددي نومونه دي د مثال په ډول: الکتاب، الحکیم، نور، الفرقان، الروح.<br>**ارزونه:**<br>ښوونکی دې په درسي کتاب کې د راغلو پوښتنو څخه په ګټې اخیستو سره د زده کوونکو پوهه و ارزوي.<br>**کورنۍ دنده:**<br>ښوونکی باید زده کوونکي په هغه کورنۍ دنده مکلف کړي، چې په درسی کې راغلې ده. | ۵ دقیقې |

لسم لوست:

## سرلیک: په ملائکو ایمان

**پانه: ۳۰– ۳۳**

**وخت:** (دوه درسی ساعتونه)

**موخې:** زده کوونکي باید:

- د ملائکو د اثبات دلایل په صحیح ډول پوهه شي
- په ملائکو باندې ایمان لرل بیانول
- د ملائکو صفات درک کړي
- په ملائکو باندې د ایمان ګټې نورو ته ورسوي

**ملائکې:**

دوهم څیز چې انسان یې په ایمان لرلو مکلف دی، پر ملائکو ایمان لرل دي.

**د ملائیکو تعریف:** ملائیکې لطیف جسمونه لري، نوراني دي او د لیدو وړ نه دي، په مختلفو اشکالو ځان بـدلولای شـي، خوراک او څښاک نه لري، مذکر او مؤنث نه دي، تولد او تناسل هم نه لري، د الله ﷻ نژدې، فرمان برداره او نېک بندګان دي.

**د پرښتو د شتون دلایل:**

هغه نړۍ چې د الله تعالی مخلوق دی، ډېر پراخه دی، چې د ځمکې کره، د ځمکې پر سر د انسان ژوند یې یوه کوچنۍ برخه ده. الله تعالی یو قدیر او توانمند ذات دی، د کارونو د ترسره کولو لپاره هغه کولی شي چې له هر راز وسیلې او سبب پرتـه ټوله هستي منظمه کړي، خو د خپل (حکمت بالغه) په مټ خپلې پرښتې چې څوک یې نه شي لیدلی، د دندو د ترسره کولـو لپاره ګمارلې دي، چې د الله تعالی امر نافذ او د انسانانو کارونه وڅاري او محاسبه یې کړي. په قرآن کریم کې د پرښـتو د شتون دلایل ډېر دي، چې د بېلګې په ډول یې یوڅو دا دي:

«لَيْسَ الْبِرَّ أَنْ تُوَلُّوا وُجُوهَكُمْ قِبَلَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ وَلَكِنَّ الْبِرَّ مَنْ آمَنَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ وَالْمَلَائِكَةِ وَالْكِتَابِ وَالنَّبِيِّينَ» ([1]).

ژباړه: (نیکي (یوازې) دا نه ده چې مخونه لوېدیځ او ختیځ ته واړوئ، خو (غوره) نیکي د هغو کسانو ده چې پـر الله او د قیامـت پـر ورځ او پرښتو او کتاب او نبیانو یې ایمان راوړی دی.) او بل ځای فرمايي: «يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا آمِنُوا بِاللَّـهِ وَرَسُـولِهِ وَالْكِتَـابِ الَّـذِي نَزَّلَ عَلَى رَسُولِهِ وَالْكِتَابِ الَّذِي أَنْزَلَ مِنْ قَبْلُ وَمَنْ يَكْفُرْ بِاللَّهِ وَمَلَائِكَتِهِ وَكُتُبِهِ وَرُسُلِهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ فَقَدْ ضَلَّ ضَلَالًا بَعِيدًا» ([2])

ژباړه: (اې مؤمنانو، پر الله او د هغه پر رسول او پر هغه کتاب چې پر خپل رسول یې نازل کړی دی او پر هغه کتاب چې لـه (قرآن) څخه مخکې یې نازل کړی دی ایمان راوړئ او هرڅوک چې د الله او د هغه د پرښتو او د هغه د کتابونو او د هغـه د رسولانو او د آخرت له ورځې څخه انکار وکړي، په رښتیا سره چې ډېر زیات لار ورکی شـوی دی.) او فرمـايي: «آمَـنَ الرَّسُولُ بِمَا أُنْزِلَ إِلَيْهِ مِنْ رَبِّهِ وَالْمُؤْمِنُونَ كُلٌّ آمَنَ بِاللَّهِ وَمَلَائِكَتِهِ وَكُتُبِهِ وَرُسُلِهِ لَا نُفَرِّقُ بَيْنَ أَحَدٍ مِنْ رُسُلِهِ وَقَالُوا سَمِعْنَا وَأَطَعْنَـا غُفْرَانَكَ رَبَّنَا وَإِلَيْكَ الْمَصِيرُ» ([3])

ژباړه: (هر هغه څه چې د الله له خوا نازل شوي، رسول او مؤمنان پرې باور لري. ټولو پر الله او د هغه پر پرښتتو او کتـابونو او رسولانو ایمان راوړی (او وايي) موږ د الله د رسولانو د هېڅ یوه ترمنځ توپیر نه کوو. او دوی ویـل: (د الله خبـره) مـو واورېده او ومو منله. ای الله له تابخښنه غواړو او تاته درتلل دي.)

---

[1] – بقره۱۷۷

[2] النساء ۱۳٦

[3] البقره ۲۸۵

پیغمبرﷺ فرمایي:{أَنْ تُؤْمِنَ بِاللَّهِ وَمَلاَئِكَتِهِ وَكُتُبِهِ وَرُسُلِهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ} ([1]) ژباړه: (دا چې پر الله، د هغه پر پرښتو، او کتابونو، او د اخرت پر ورځ ایمان راوړئ.)

**د ملائکو ډولونه:**

ملائکې یعنې د اللهﷻ مخلوقات چې د بشر لپاره د لیدو وړ نه دي، په دوه ډوله دي: یوه ډله چې کار یـې د الله تقـدیس دی، پـه عبادت کې غرقې دي، بشر ته په خدمت مکلفې نه دي د هغو ملائکو له ډلې څخه نه دي چې آدمعليه السلام ته یې سجده وکـړه هغـوی همغه مقربې ملائکې دي. بله ډله ملائکې هغه دي چې کار یې انسانانو ته خدمت دی او هغه څه چې اړتیا لري پوره کوي یې.

**د تدریس میتود:** پوښتنه، ځواب، توضیحي او تشریحي مباحثه

**مرستندویه درسي مواد:** کتاب، تخته، تباشیر.......

**د لوست جریان:**

| وخت | فعالیتونه |
|---|---|
| ۵دقیقې | - محترم ښوونکی له مقدماتي موضوعاتو څخه وروسته د تېر درس په څو پوښتنو سره ارزوي د مثال په ډول:<br>- څوک کولای د الله تعالی کلام تعریف کړي؟<br>- څوک کولای شي د خدای پاک د کلام د صفت د اثبات لپاره یو دلیل ووایي؟<br>- څوک کولای شي د قرآن کریم نومونه واخلي؟<br>محترم ښوونکی د ځوابونو له لاسته راوړلو وروسته د درس سرلیک د تختې پرمخ لیکي |
| ۲۵دقیقې | محترم ښوونکی د زده کوونکو توجه د خپلو کتابونو ته اړوي او یوازې د درس نصوص لولي او پاتې درس په زده کوونکو وایي.<br>محترم ښوونکی زده کوونکو ته څو دقیقې وخت ورکوي ترڅو هغویې په پټه خوله درس مطالعه کړي.<br>که چېرې د زده کوونکو لخوا پوښتنې مطرح کېږي هغه حل کوي وروسته محتـرم ښـوونکی لـه دوه زده کوونکو غواړي چې یو له لاندې جانبي عناوینو څخه د کتاب له مخې ولولي او نور هغه ولیکي.<br>- د ملائکې تعریف<br>- د تعریف شرحه<br>- د ملائکو د اثبات دلایل<br>- پر ملائکو ایمان<br>ملائکې له ټولو ګناهونه څخه پاکې دي<br>- د ملائکو صفتونه<br>- د ملائیکو دندې<br>- په ملائکو باندې د ایمان لرلو ګټې<br>محترم ښوونکي د زده کوونکي توجه ځان ته واړوي او د زده کوونکو لپاره له جـانبي عنـاوینو پـه ګټـې اخیستنې سره درس تشریح کوي او د اړتیا په صورت کې پرځینو ټکو باندې ډېر ترکیز کوي وروسته له څـو زده کوونکو څخه غواړي چې هر یو په خپل نوبت سره یو سرلیک درس تشریح کړي.<br>محترم ښوونکی صیب د حدیث شریف متن د تختې پرمخ ولیکي او له ممتاز شاګرد څخه وغواړي چې هغـه |

[1] السنن الکبری للبیهقی ص ۲۰۳

| | |
|---|---|
| | ترجمه کړي او که شاګرد له مشکل سره مخامخ کېږي له هغه سره مرسته وکړي. |
| ۱۰دقیقې | **خلاصه:** دغه درس په لاندې ټکو کې خلاصه کیږي:<br>– ملائکې د خدایﷻ له نوراني او لطیفو مخلوقاتو څخه عبارت دي چې د الله له اوامـــرو څخـــه هېڅکلـــه سرغړونه نه کوي.<br>– ملائکې له نور څخه پیدا شوې او په سترګو نه لیدل کېږي<br>– ملائکې له هر ډول ګناه څخه پاکې دي او په ډول چې وغواړي ځان بدلولای شي<br>– په ملائکو باندې ایمان لرل فرض دي او د هغوی له وجود څخه منکر کافر دی<br>– ملائکې خدای ته نژدې دي او خارق العاده کارونه ترسره کوي.<br>مقربې ملائکې عبارت دي له جبرائیل، میکائیل، اسرافیل، عزرائیل، کرام الکاتبین، نکیره اومنکره څخه.<br>**ارزونه:**<br>محترم ښوونکی د درس د زده کړې لپاره د درسي کتاب له پوښتنو له لارې زده کوونکي ارزیابي کړي. |
| ۵دقیقې | **کورنۍ دنده:**<br>ښوونکی باید زده کوونکي په هغه کورنۍ دنده مکلف کړي، چې په درسي کتاب کې راغلې ده. |

**يولسم لوست:**

## سرليک: داحاديثو اهميت

**مخ: ۳۵**

**وخت:** دوه درسی ساعتونه

**موخې:** باید زده کوونکي:

۱– د درس متن سم ولولي.

۲– د حدیث ارزښت او فضیلتونه درک کړي.

۳– د درس مفهوم زده کړي.

۴– د حدیث له مضمون سره ځانګړې علاقه پیدا کړي.

**لازمي ښوونه:**

– په اسلام کې څلور اصله دي، چې ټول احکام او اسلامي فرامین پر هغو ولاړ دي.

: کتاب الله (قرآنکریم)، احادیث او سنت نبوی ﷺ، د امت اجماع او قیاس.

د اسلام په اساساتو کې دویمه مرجع او اصل د رسول اللهﷺ حدیث او سنت دي، چې پیروي یې په هر بالغ، عاقل مسلمان لازم دي.

نبوي احادیث په حقیقت کې د قرآنکریم تفصیل او تفسیر دی، چې تأئید د دې موضوع ډېر آیاتونه وجود لري. رسول اللهﷺ په خپله د قرآنکریم یو روښانه ممثل و لکه څنګه، چې عائشې رضی الله عنها څخه دهغه د اخلاقو پوښتنه وشوه هغې وفرمایل: درسول اللهﷺ اخلاق قرآن و.

د رسول اللهﷺ احادیث یوه نوع وحي بلل کیږي، چې الله ﷻ به درسول اللهﷺ ته الهام کاوه. لکه څنګه چې د قرآني آیاتونو پیروي او پابندي لازمه ده همدا شان د مبارکو احادیثو ضروري ده. لکه څنګه، چې الله کریم د النساء سورت په ۸۰ آیت کې فرمايي: (مَن يُّطِعِ الرّسُولَ فَقد اَطَاعَ الله وَمَن تَولّی فَمَا أرسلنَکَ عَليهِم حَفِيظاً)

**ژباړه:** چاچې دپيغمبر اطاعت وکړ هغه په اصل کې د خدای اطاعت وکړ او چا چې مخ واړوه، نو په هرصورت موږ پر دې خلکو ته د څارونکي او ساتونکي په توګه نه یې لېږلی. همدارنګه الله متعال پر دې اړه فرمايي: (يَاَيُّهَاالّذِينَ آمَنوُا لاتَرفَعُوا أصوَاتَکُم فَوقَ صَوتَ النّبیِّ وَلا تَجهَرُوا لهُ بِالقَولِ کَجَهرِبَعضِکُم لِبَعضٍ أن تَحبَط أعمَالُکُم وَأنتُم لا تَشعُرُون) (سورة الحجرات (۲)

**ژباړه:** ای مؤمنانو خپل اواز دپيغمبر له اواز نه مه پورته کوئ او مه له پيغمبرﷺ سره په لوړ غږ خبرې کوئ لکه چې پخپلو مینځو کې یوله بل سره په لوړ غږ خبرې کوئ هسې نه چې ټول عملونه بابېزه شي او تاسې خبر هم ونه اوسی.

– کله چې د رسول اللهﷺ حدیث لوستل کېږي، نو اورېدل یې پرمسلمانانو مستحب دي. باید په مقابل کې یې داسې ادب مرعات کړي ګویا رسول اللهﷺ حضور لري او حدیث فرمایي. ([1])

– د امت علماوو او محدثینو د موضوع اهمیت درک کړی و، چې پر قلم یې لاس پورې کړ او په زرګونو احادیث یې را ټول کړل. چې د نمونې په توګه د ځینو مشهورو کتابونو ذکر کوو: سم بخاری، سم مسلم، سنن ابوداود، ترمذی، النسائی، ابن ماجه، مؤطا، مسند امام احمد حنبل، البیهقی، او داسې نورو محدثینو کرامو احادیث په اعتبار د را یانو په څو قسمه تقسیم کړل:متواتر، مشهور واحاد سم، حسن او داسې نور.

**۱ـــ** متواتر حدیث هغه ته ویل کیږي، چې د راویانو تعداد یې دومره زیات وي، چې په دروغو ویلو یې متهم کېدل غیر ممکن وي. متواتر حدیث خاص شروط لري دمثال په توګه دراویانو تعداد به یې زیات وي او په دروغو ویلو به یې متهم کېدل غیرممکن وي همدارنګه روایان به په ټولو مرحلو کې د تواتر له حد څخه کم نوي.

---

[1] تفسیر کابلی – جلد ششم

۲ـــ مشهور حدیث هغه ته ویل کیږي، چې د اصحابو کرامو په زمانه کې یې روات کم وي اما د تابعینو په زمانـــه کـــې یـــې شـــهرت میندلی وي او روات یې هغه حد ته رسیدلي وي، چې صفات یې په دروغو ویلو غیر ممکن وي. محـــدثین هغـــو اشخاصـــو تـــه ویـــل کیږي، چې په حدیثو باندې روایتاً اودرایتاً کامل فهم ولري او په عین حال کې په تدریس د مسند حدیث مصروف وي.

۳ـــ آحاد حدیث هغه ته ویل کیږي، چې روایت یې یو یا دوو اویا زیاتو کړی وي اما د مشهور حدیث درجې ته نوي رسیدلی.

۴– مرسل حدیث هغه دی، چې سلسله دروایت یې تابعینو کرامو رحمة الله علیهم ته رسیدلې وي.

۵– موقوف حدیث هغه حدیث ته ویل کیږي، چې سلسله د روایت یې صحابه کرامو رضی الله عـــنهم تـــه رســـیدلې وي او مرفوع حدیث هغه دی، چې سلسله د روایت یې پخپله رسول اللهﷺ ته رسیدلې وي.

**د صحابي تعریف:** صحابي هغه چاته ویل کیږي، هغه رسول اللهﷺ لیدلی وي اوایمان یې پرې راوړي وي او هم په ایمان کې له دنیا څخه تللی وي.

تابعي هغه مؤمن چاته ویل کیږي، چې یو له اصحابو کرامو رضی الله عنهم یې لیدلی وي او په ایمان له دنیا څخه رحلت کړی وي.

رسول اللهﷺ اهمیت او فضیلت د حدیث رسولو نورو خلکو ته او هم وعید عذاب پر هغو خلکو چې دروغ او جعلي حدیث بیانوي فرمایي:

(عَن عَبدِالله إبن عَمرو قالَ قالَ رَسُولُ الله ﷺ بَلِّغُوعَنِي وَلَوآيَةً وَحَدِّثُوا عَن بَنِي إسرَائيل وَلا حَرَجَ وَمَن كَـــذَّبَ عَلَـــيّ مُتَعَمِـــداً فليَتَبوَّا مَعقَدَهُ مِن النّار) {رواه البخاری}.

له عبد الله بن عمروﷺ څخه روایت دی، چې رسول اللهﷺ فرمایلي: ورسوئ له ما څخه اګر که یو آیـــت هـــم وي (مـــراد احادیث دي) او حکایت کوئ د بني اسرائیلو څخه په دې کې ګناه نشته او چاچې پرما دروغ وتړل، نو هغـــه دې پـــه دوزخ کې د ځان لپاره ځای تیار کړي.

**کلیمومعناوې:** (تحقیق – څیړنه) (روڼ – روښانه) (خفی – پټ) (منوط – تړلی)

(مثابه – مثال په څیر) (تمسک – منګول لګول)

**د تدریس تګلاره:** پوښتنې او ځوابونه، انفرادي او ګروپي، توضیحي او تشریحي.

**مرستندیه درسي توکي:** کتاب، تخته، تباشیر.......

| وخت | فعالیتونه |
|---|---|
| ۵دقیقـــې سریزه | ښاغلی ښوونکی صاحب ټولګي ته د دا خلیدو په وخت کې السلام علیکم ورحمـــة الله وبرکاتـــه وایـــې، پوښتنه کوي، حاضري اخلي او د ټولګی نظم برابروي او د حدیث شریف په اهمیت او فضیلت باندې زده کوونکو ته مختصر معلومات ورکوي. ښوونکي صاحب زده کوونکو ته هم وخـــت ورکـــوي ترڅـــو زده کوونکي هم د حدیث شریف په اهمیت باندې څرګندونې وکړي او د زده کوونکو پوښتنو تـــه ځوابونـــه ورکوي او بعضې ځوابونه یې اصلاح کوي. |
| ۲۵دقیقـــې ددرس وړانـــدې کول | ښوونکي صاحب دا پوښتنه هم کوي، چې د قرآنکریم څخه وروسته مهم مصدر او مرجع په اسلام کې څه شی دي؟<br>ښوونکی صاحب د درس سرلیک په یو زده کوونکي په تخته لیکي.<br>ښوونکی صاحب له دوو زده کوونکو څخه غواړي، چې یو جانبي عناوین ولولي او دوهم یـــې پـــه تختـــه ولیکي:<br>– د پیغمبرﷺ دخبرو پیروي کول.<br>– حدیث د قرآنکریم تفسیر دی.<br>– حدیث شریف د اسلام دوهم مصدر دی.<br>ښوونکی صاحب زده کوونکو ته دنده ورکوي، ترڅو درس ټیټ آواز ولولي او که کوم مشکل ورته پیـــدا |

| | |
|---|---|
| | کیږي هغه دځان سره ولیکي.<br>پخپله په همدغه وخت کې تحقیق، روښانه، پټ، منوط، مثابه او تمسک په تخته ولیکي.<br>ښوونکی صاحب یو له زده کوونکو څخه غواړي، ترڅو تختې مخ ته راشي او دا کلیمې معنا کړي، که نوموړي زده کوونکی د کلیمو په معناکې ستونزه درلوده ښوونکی صاحب د ورسره مرسته وکړي.<br>ښوونکی صاحب د عناوینوڅخه په استفادې سره درس زده کوونکوته تشریح کړي او په بعضومهمو نکاتو ترکیز وکړي. پس له زده کوونکو څخه غواړي، ترڅو هریو جانبي سرلیک توضیح او تشریح کړي.<br>ښوونکی صاحب زده کوونکي په څو مناسبو ګروپونو تقسیم کړي بیا د هرګروپ سرګروپ وټاکي هغوی ته دنده ورکوي، ترڅو د حدیث په اهمیت بحث او خبرې وکړي او خلاصه د بحث د سرګروپ په واسطه د کاغذ په مخ و لیکي. پخپله د ټولګي نظم وساتي کله، چې ضرورت وي، نو د ګروپونو ترمنځ د اختلاف په وخت کې د مداخله کوي.<br>**ارزونه:**<br>ښاغلی ښوونکی د خپل اطمنان په خاطر چې درس یاد دی او کنه سوالونو په ذریعه ارزونه وکړي.<br>**خلاصه:** |
| ۵ دقیقې | دا درس په لاندو نکاتو خلاص کیږي.<br>۱– حدیث عبارت له اقوال، افعال او تقریرات د پیغمبرﷺ څخه دی.<br>تقریر هغه عمل ته ویل کیږي، چې د رسول اللهﷺ په وړاندې شوی وي او رسول اللهﷺ د سکوت په ذریعه هغه خوښ کړی وي او دهغه څخه یې نهي نوي فرمایلې.<br>۲– وحي په دوه قسمه ده: وحي جلي چې عبارت د قرآنکریم څخه ده. دویم وحي خفي چې عبارت له احادیثو څخه ګڼل کیږي.<br>۳– پیروي د پیغمبرﷺ د دستوراتو څخه په مثال د پیروی د فرامینو د اللهﷻ څخه دي.<br>۴– حدیث شریف په حقیقت کې تفصیل او تفسیر دقرآنکریم دی.<br>۵– حدیث شریف دویمه مرجع او مصدر د اسلام دی.<br>**کورنۍ دنده:** |
| ۱۰دقیقې | ښوونکی صاحب د زده کوونکوته دنده ورکړي، ترڅو دحدیث شریف په اهمیت باندې یوه د شپږو کرښو مقاله ولیکي. |

**دولسم لوست:**

## **سرلیک**: تدبیر په کارونو کې

**مخ:** ۳۹

**وخت:** دوه درسي ساعتونه

**موخې:** زده کوونکي باید:

۱– د حدیث شریف نص او متن د درس سم ولوستلی شي.

۲– د حدیث شریف ژباړه سمه ولولي.

۳– د حدیث شریف دکلیمو په معناوو وپوهیږي.

۴– په خپل ژوند کې د حدیث شریف له ګټو څخه استفاده ولوستلی شي.

**لازمي ښوونه:**

دا یو څرګند حقیقت دی، چې د اسلام په لمن کې ټولې ښګنې، کامیابی او د دارینو سعادت نغښتی دی.

نو کولای شو، چې ووایو په اسلامي کارونو کې د فکر مصدر تدبیر دی. اصحابو کرامو رضی الله عنهم، چې له اسلام څخه یې پوره درک درلود، نوکله به چې مشکل ورته پیدا شو د حل لپاره به یې رسول اللهﷺ ته مراجعه کوله، ځکه هغه د امت لپاره په ټولو اړخونو کې ژوندۍ مرجع و.نن ورځ د مسلمانانو په منځ کې د رسول اللهﷺ با ارزښته لارښوونې د یو اصل او قانون په شکل برقرارې دي.

نو باید مسلمانان په ټولو چارو کې د رسول اللهﷺ سیرت د ژوند سر مشق وګرځوي او د لارښونو څخه یې پیروي وکړي، چې په پیروی کې یې د دنیا او اخرت نیکمرغی دي.

د رسول اللهﷺ د تدبیرونو څخه یوه د نمونې په څیر بیانوو: د خدای رسول د احزابو غزوه و خندوله، چې په حقیقت کې دا یو تدبیر و، چې د دوښمن د شکست سبب وګرځیده، ځکه د ژمي موسم په رارسیدو و او دوښمن د یخنۍ په مقابل کې هیڅ تیاری نه درلود، همدارنګه د غذایي موادو اکمالات یې د لشکر لپاره هم ګران وو د هرې ورځې په تیریدو سره د دوی په خپل منځ کې مختلفې ډلې جوړې دې بې اعتمادي پیدا کیدله اودوی دشکست سره مخ شول مسلمانان کامیاب شول.

**دځینوکلمو معنا:**(خزرج – د قبیلې نوم دی د مدینې خلک وو) (نهفته – پټ) (انحراف – بېلاري) (نصایح –د نصیحت جمع ده) (اهل فن – کار پوه) (تدبیر– حکمت، سنجش) (عزم راسخ – د محکم نیت اراده) (مهیا – آماده)

**د تدریس تګلاره:** پوښتنې او ځوابونه، انفرادي او ګروپي، توضیحي او تشریحي.

**مرستندویه درسي توکي:** کتاب، تخته، تباشیر ....

| وخت | فعالیتونه |
| --- | --- |
| ۵دقیقې | ښاغلی ښوونکی د تیر درس ارزونه د مقدماتي موضوعاتو څخه وروسته په څو سوالونو پیل کړي. د مثال په توګه کولای شي ووایي: په اسلام کې څو څیزونه اصل او مصدردي؟<br>ښاغلی ښوونکی د ځوابونو د اوریدلو څخه وروسته د نوي درس سرلیک په تخته ولیکي.<br>ښاغلی ښوونکی د زده کوونکو ته د نوي درس په هکله مختصر معلومات ورکړي.<br>ښاغلی ښوونکی زده کوونکو ته هدایت ورکوي، ترڅو درس په چوپتیا سره ولولي که کوم سوال یا مشکل پیدا کیږي، نو دځان سره د ولیکي. او په خپله دا کلمې دټولګي په تخته ولیکي: خزرج، نهفته، انحراف، نصایح، اهل فن، تدبیر، اومهیا.<br>ښاغلی ښوونکی د وروسته د مطالعې څخه که کوم سوال زده کوونکو ته پیداشوی و حل کړي.<br>ښاغلی ښوونکی یو له زده کوونکو څخه غواړي، چې نوموړې کلیمې معنا او ولیکي. |
| ۲۵دقیقې دلوست وړاندې کول | ښاغلی ښوونکی د حدیث شریف نص په یو زده کوونکي باندې په تخته لیکي.<br>بیا له زده کوونکو پوښتنه کوي چې کولای شي حدیث شریف د ذهن څخه معنا کړي.<br>ښاغلی ښوونکي یو له زده کوونکو څخه غواړي، ترڅولاندې جانبي عناوین په تخته ولیکي:<br>– د تدبیر غوښتنې.<br>– تدبیرد کامیابی لامل.<br>– د کار دجریان پلټنه او ارزونه پلي کول یې په موخو باندې.<br>ښاغلی ښوونکی د جانبي عناوینو په استفادې سره زده کوونکو ته درس تشریح کوي او د ضرورت په وخت کې په بعضو اساسي نکاتو زیات ترکیز کوي.<br>ښاغلی ښوونکی له دریو زده کوونکو غواړي، څوهریو یې د درس جانبي سرلیک تشریح کړي.<br>ښاغلی ښوونکی زده کوونکي په دوه ګروپونو تقسیموي او هغوي ته دنده ورکوي چې دیوګروپ کسان له بل ګروپ څخه په نوبت درس په هکله پوښتنې وکړي.<br>ښاغلی ښوونکی د هر ګروپ ځوابونه اوري او دځان سره یې لیکي.<br>ښاغلی ښوونکی وروسته له دې فعالیت څخه صحیح ځواب ویونکي تقدیروي او غلط ځوابونه اصلاح کوي. |
| ۵دقیقې | **ارزونه:** ښاغلی ښوونکی د خپل اطمنان لپاره چې درس یاد دی او کنه، زده کوونکي د درسي کتاب په وسیله ارزونه کوي.<br>**خلاصه:** دا درس په لاندونکاتو خلاصه کیږي:<br>۱– انسان باید د هرکار په اخر کې تدبر وکړي.<br>۲– مسلمان باید د آخرت اجرته د دونیا پر نامشروع ګټو ترجیح ورکړي.<br>۳– اسلام د ژوند په ټولو چارو کې د خپلو پیروانو ګټه او ښېګنه په نظر کې نیولې ده.<br>۴– انسان باید په ټولو چارو کې خپل مسؤلیتونه ترڅیرنې لاندې ونیسي.<br>۵–تدبیر او غور کول د انسان بریالي توب او نیکمرغۍ لامل ګرځي.<br>٦– د بنده تدبیر باید الهي توکل سره مل او تړلی وي. |
| ۱۰دقیقې | **کورنۍ دنده:** ښاغلی ښوونکی زده کوونکو ته د درسي کتاب نه کورنۍ دنده ورکوي. او دوی ته امر کوي، چې دکارونو دتدبیر په هکله یو پنځه کرښیزه مقاله ولیکي. |

**دیارلسم لوست:**

## سرلیک: د صلحې ارزښت او د خلکو ترمنځ روغه

**مخ: ۴۳**

**وخت:** دوه درسي ساعتونه

**موخې:** زده کوونکي باید:

۱- د مبارک حديث ترجمه په سمه توګه وپوهيږي.

۲- د صلحې او پخلاينې ارزښت درک کړای شي.

۳- د حديث په حکمت وپوهيږي.

۴- د صلحې د ارزښت په هکله خبرې وکولای شي.

**اضافي معلومات:**

- د اسلام دين د صلحې او پخلاينې دين دی. چې د تل لپاره خپل پيروان صلحې او ورولۍ ته را بولي او تشويقوي يې. الله تعالی د النسآء سورت ۱۲۸مبارک آيت کې فرمايي: (وَالصّلحُ خَيرٌ) ژباړه: صلحه غوره ده. که څه هم د مبارک آيت دغه برخه خاوند او ميرمنې ترمينځ د صلحې او پخلاينې په هکله ده.مګر نه يواځې پدې هکله بلکې په ټول چارو د ژوند کې صلحه غوره ده، خو بايد د اسلام په چوکاټ کې وي او مسلمان ته ضرر ونه رسيږي. مسلمان بايد کفارو ته صلحې وړانديز ونکړي، بلکې که د دوی لخوا صلحې وړانديز وشي، نو د اسلامي ټولنې دښېګڼو او مصلحتونو د تضمين په ترڅ کې ومنل شي.

لکه چې رسول اللهﷺ د هجرت په شپږم کال د مکې دمشرکينو وړانديز د صلحې په هکله قبول کړ. او د دوی سره په دې ماده باندې صلحه وکړه، چې دا صلحه د اسلام په تاريخ کې د حديبيي د صلحې په نامه مشهوره ده.

- صلحه په اسلام کې د ځانګړي مقام څخه برخمنه ده، چې رعايت کول يې په مسلمانانو باندې يوه ديني وجيبه ده، ځکه الله تعالی په هغې امر کړی او د مسلمانانو نه غواړي کله چې تاسو د دوو تنو يا دوو قومونو يا دوو ډلو مؤمنانو ترمنځ وينې بايد د دوی ترمنځ صلحه او پخلاينه را ولې. لکه څنګه چې دحجرات په مبارک سورت کې ورځنې يادونه شوې ده.

(وإن طَآئِفَتان مِن الْمُؤمِنينَ اقتَتلوُا فَاصّلِحوُا بَينَهُمَا فَإن بَغَت إحدَاهُمَا عَلى الأُخرَى فَقاتِلوااﻟّتي تَبغِي حَتى تَفِيءَ إلى أمرِالله فَإن فَاءَت فَاصّلِحوُا بَينَهُمَا بِالعَدلِ وَأقسِطُوا إنّ اللهَ يُحِبُ المُقسطِين) (حجرات (۹).

ژباړه: او که له مؤمنانو څخه دوه ډلې پخپلو مينځو کې په جنګ شي نو د هغو په مينځ کې صلح وکړئ بيا که له هغو نه يوه ډله پر بلې تيری وکړي نو له تيري کوونکي سره و جنګيږئ، تر دې پورې چې هغوی د الله د حکم خواته راوګرځي بيا کله چې هغوی را وګرځي نو د هغوی په مينځ کې په عدل سره سوله وکړئ، او انصاف وکړئ،چې الله انصاف کوونکي خوښوي.

همدارنګه الله تعالی په وروسته آيت کې فرمايي: (إنَّمَا الْمُؤمِنينَ إخوَةٌ فَاصّلِحوُا بَينَ أخَوَيكُم وَاتَّقوُا اللهَ لَعَلّكُم تُرحَمُون)

ژباړه: مؤمنان خويو دبل سره وروڼه وي، نو د خپلو ورونو په مينځ کې مناسبات سم کړئ او له الله نه وويريږئ هيله ده چې پر تاسې رحم وکړای شي.

- د يوې اسلامي ټولنې ښيرازي په اتحاد، يوالي، صلحې او پخلاينې پورې اړه لري. يعنې يوه اسلامي ټولنه هغه وخت د برياليتوب لوړې څوکې ته رسيدای شي، چې د وګړو ترمينځ يې خپل منځي ستونزې شتون ونه لري. او د دوی تر مابين صلحه برقراره وي. نن ورځ چې کوم کسان د اسلام د عدالت چغې وهي که دوی يوازې په دوو پورتنيو مبارکو آيتونه عمل وکړي نو زموږ هيواد افغانستان به د دې ټولو ستونزو او اختلافونو څخه نجات ومومي.

رسول اللهﷺ هم د صلحې د ارزښت په هکله قمتي لارښوني کړې دي، حتی را په ګوته کړي يې دي: که چيرې يو نفر صلحې او جوړښت په خاطر دروغ وايي، نو باوري توګه دروغجن ندی.

له دي حدیث څخه د موضوع ارزښت راوزي یعني چې دروغ ویل لویه ګناه ده خو دصلحې په نیت روا کیږي لکه چې فرمايي:(عَن اُم کلثوم بنت عُقبةَ بن ابی مُعیط قالت سَمِعتُ رَسُولَ الله ﷺ یَقولُ لیسَ الکَذابِ الذِی یُصلِح بَین النّاس وَیقولُ خَیراً وَیُمنی خیراً) [متفق علیه]

**ژباړه:** له حضرت ام کثوم بنت عقبه بن ابی معیط رضی الله عنها څخه روایت دی چې له رسول الله ﷺ څخه مې واوریدل چې مایل یې: څوک چې دخلکو ترمنځ صحله کوي او د ښېګڼې خبرې کوي او ښې خبرې نورو ته رسوي دروغجن ندی.

همدارنګه فرمايي: (عَن اَسمآء بنت یَزید قالت قالَ رَسُولُ الله ﷺ لا یَحِلَ الکِذ بُ إلاّ فِی ثلثَ کَذبَ الرّجـلُ إمراتِـه لِیرضِـیهَا وَالکِذبَ فِی الحَربِ وَالکِذبَ لِیُصلِح بَینَ النّاس) [رواه احمد والترمذی]

**ژباړه: له** حضرت اسماء بنت یزید رضی الله عنها روایت دی، چې رسول الله ﷺ و فرمایل: دروغ ویل روا ندي مګر په دریو ځایونو کې: د خپلې میرمنې د رضایت له کبله، دروغ ویل په جنګ کې او د خلکو ترمنځ د صلحې لپاره.

**دځینو کلمو معنا:**(ابودرداء: د درداء د پلار: د اسم کنیه ده) (خلل: سوری اوتیت والی)

**د تدریس تګلاره:** پوښتنې او ځوابونه، انفرادي او ګروپي، توضیحي او تشریحي.

**مرستندویه درسي توکي:** کتاب، تخته، تباشیر.....

| وخت | فعالیتونه |
|---|---|
| ۵دقیقې سریزه | ښاغلی ښوونکی وروسته له مقدماتي موضوعاتو څخه د څوسوالونو په طرح کولو سره د تیر شوي درس ارزونه کوي. د مثال په توګه کولای شي دغه دوه کلیمې حدیث(فأمض – فأمسک) معنا کړي.<br>ښاغلی ښوونکی وروسته د اوریدلو د صحي ځوابونو د صلحې او پخلاینې په هکله زده کوونکو څو لحظې خبرې کوي او له دوی څخه غواړي څو ژوندي مثالونه د نا امنی، خپل مینځي جنګونو او قومي اختلافاتو په هکله ووايي. |
| ۲۵دقیقې د درس تقدیم | ښاغلی ښوونکی د درس سرلیک په یو زده کوونکي باندې د تختې پرمخ لیکي.<br>ښاغلی ښوونکی زده کوونکو ته لارښونه کوي، چې درس د کتاب له مخې په خاموشانه ډول ولولي.<br>او په خپله د ابودرداء او خلل کلیمې په تخته لیکي.<br>وروسته د لیکلو د کلیمو او د درس د مطالعې څخه که کوم سوال یا مشکل وجود ولري، نو ښاغلی ښوونکی به هغه حل کوي له یوه داسې زده کوونکي څخه غواړي، چې هغه په فعالیتونو کې کم سهم اخلي، ترڅو کلیمې معنا کړي.<br>ښاغلی ښوونکی له څو زده کوونکو څخه غواړي، چې هر یو یې یو پارا ګراف درس په نوبت سره ولولي. که کوم مشکل په تلفظ د حدیث شریف کې وي نو ښاغلی ښوونکی د هغه اصلاح کړي.<br>ښاغلی ښوونکی یو له زده کوونکو څخه غواړي، چې لاندې جانبي عناوین پر تخته ولیکي:<br>– د صلحې ارزښت د اسلام له نظره.<br>– صلحه وحدت مینځته راوړي.<br>– ذات البیني اختلافونه لامل د دین ضایع کیدو کیږي.<br>ښاغلی ښوونکی دجانبي عناوینو څخه په استفادې سره زده کوونکو ته درس تشریح او توضیح کوي.<br>ښاغلی ښوونکی پر بعضو مهمو کلیدي نکتو زیات ترکیز کوي.<br>ښاغلی ښوونکی د څو زده کوونکو په مرسته درس تشریح کوي او هر یو ته دنده ورکوي، چې جانبي سرلیک خپلو ټولګیوالو ته تشریح کړي.<br>ښاغلی ښوونکی وروسته د ګروپونو نماینده ګانو څخه په څلورو مناسبو ګروپونو ویشي هغوی ته دنده ورکوي چې هرګروپ د نماینده په شمول د صلحې او پخلاینې ارزښت په هکله بحث وکړي. |

| | |
|---|---|
| | د هرګروپ نماینده د بحث نتیجه د کاغذ په مخ لیکي.<br>ښاغلی ښوونکی په همدې حال کې ټولګی کنترولوي د امکان په صورت کې د هرګروپ سره اشتراک هم کوي.<br>**ارزونه:** |
| ۱۰دقیقې | ښاغلی ښوونکی د خپلې تسلی لپاره چې درس زده کړي زده کوونکي د درسي کتاب په وسیله ارزیابي کوي.<br>**خلاصه:**<br>دا درس په لاندې ټکوکې خلاصه کیږي.<br>۱- د حدیث شریف راوي نوم یې عویمر دعامر زوی خزرج دقبیلې څخه و،اوپه ابودرداء یې شهرت درلود .ډیر لوی فقیه صحابي ؤ. پیغمبرﷺ ورته دحکیم الامة لقب ورکړی ؤ. کله چې مسلمانانو مدینې منورې ته هجرت وکړ نو پیغمبرﷺ دده اود سلمان فارسي رضی الله عنهما ترمنځ دمواخات (وروروګلوۍ) تړون وتاړه. په ټولو غزاګانو کې درسول اللهﷺ سره ملګری ؤ. حضرت عثمانؓ ددمشق قاضی مقرر کړی و. نوموړی دهجرت په(۳۲)کال دحضرت عثمان(رض) دخلافت په دور کې په دمشق کې وفات شو.<br>۲- صلحه او وروليې په اسلام کې خاص مقام لري. حتی له نفلي عباداتو څخه شمیرل کیږي.<br>۳- صلحه باعث د اتحاد، همغږۍ، کامیابۍ، رفا، امنیت او نیکمرغۍ ګرځي.<br>۴- ذات البیني اختلافونه لامل د زوال ګرځي او هم داسلام تیت پرکوالي کیږي.<br>۵- د نزاع د رفع کیدلو او صلحې د راتللو په خاطر دروغ ویل جواز لري. |
| ۵ دقیقې | **کورنۍ دنده:**<br>ښاغلی ښوونکی زده کوونکي په کورنۍ دنده ګماري او دوی ته دنده ورکوي، ترڅو د صلحې په ارزښت باندې یوه پنځه کرښیزه مقاله ولیکي. |

څوارلسم لوست:

## سرلیک: په کارونوکې اسانتیا

مخ: ۴۶

وخت: دوه درسی ساعتونه

موخې: زده کوونکي باید:

۱– د درس متن سم وویلای شي.

۲– د حدیث شریف ترجمه وکولای شي.

۳– د حدیث شریف پیغام درک کړي.

۴– د اسلام په فرامینو او درستوراتو ملتزم وي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

– اسلام یوازنی کامل د تحریف څخه پاک دین دی، چې د انسان د ژوند د مختلفو ابعادو لپاره پکې ځای شـــته او ځـــواب ویونکی د ټولو مشکلاتو دبشریت لپاره دی. الله د هر امر په آخر کې د خپلو بندګانو د وس سره سم اسانتیاوې برابرې کړې دي.موږ هغه ټولې په سترګو ګورو الله تعالی د دې موضوع په اړه د حج په سورت کې آیت ۷۸ فرمايي: (وَمَا جَعَلَ عَلَـــيكُمُ فِي الدِينِ مِن حَرَج) ژباړه:او په دین کې یې پرتاسې څه تنګي نده راوستې.

مفسرین کرام لیکي: د اسلام په دین کې داسې حکم ندی وضع شوی، چې بشر هغه نشي کولی، بلکې په احکامو د دیـــن کـــې رخـــصتونه او قسم قسم اسانتیاوې وجود لري. هوکې کله چې موږ په شرعي احکامو ته نظر کوو رخصت او سهولت په مخـــه رازي. د مثـــل پـــه توګـــه د لمانځه قصر چې الله کریم فرمایي: (وَإذاضَربتمُ فِي الارضِ فَليسَ عَليكمُ جُناحٌ أن تَقصُرُوا مِن الصّلوةِ الایه) (سورت النساء آیت ۱۰۱)

ژباړه: او کله چې تاسې په سفر ووتلی نو څه باک نشته که په لمانځه کې لنډوالی وکړی.

همدارنګه د اسلام مبارک دین هغو کسانو ته، چې مریضان وي او یا په سفر کې وي د رمضان د میاشتې روژې افطار جـــواز ورکړی. الله متعال فرمایي: (فَمَن کانَ مِنکمُ مَریضاً أوعَلی سَفرٍ فَعِدَةٌ مِّن أيّامٍ اُخَر) ژباړه: کسیکه ازشما مریض ویا درسفر بود افطارکند وروزهای افطارشده خود را بشمارد بعد ازاینکه شفا یافت ویا از سفر برګشت روزه ګیرد. همدارنګه نـــور آیتونـــه هم شته چې انسان یې د خپل وس سره سم مکلف کړی دی. د مثال په ډول الله کریم په اخر دبقرې سورت کـــې فرمـــایي: (لایکلف الله نفساً إلاّ وسعها) (آیت ۲۸۶) ژباړه: الله هېڅ نفس ته دهغه له وسې نه پورته مسؤلیت نه متوجه کوي.

– نو که موږ دېته دقیق متوجه شو دا نتیجه په لاس رازي، چې ټول حکمونه د اسلام د بشر نفع او موافق د دوی توان ســـره دي او هیڅ زحمت پکې ځای نلري. په همدې خاطر دا دین ټول بشریت لپاره او کامل د ټولو تیرو شوو ادیانو څخـــه. لکـــه څنګه، چې نورو اسماني دینونو د اسلام په پرتله ډېر مشکلات درلودل لکه لمونځ، روژه او داسې نور د مثال پـــه توګـــه: د نورو دینونو پیروانو به چې کله د رمضان په شپه ویده کیدل نو پر دوی باندې خوراک، څښاک او جماع حق نه درلود، سره لدې، چې شپه به پاتې وه.

او یا داچې په هرځای کې یې د ځمکې په سر لمونځ نشوای کولی. او یا که لباسونه به په نجاست ملوس شـــول، پـــه مینځلـــو نـــه پاکیدل بلکې هغه ځای به یې پرې کولو. اما په اسلام کې دا سهولتونه زیات دي.که یو څوک مریض وي، نو کـــولای شـــي لمـــونځ په ناسته وکوي او که کیناستلای نشي نو په ملاسته د وکړي او که په ملاسته هم نشي کولای نو دسر په اشاره د وکړي.او یـــا کـــه اوبه نوي نو دپاکې خاورې څخه د استفاده وکړي یعنې تیمم د ووهي. او یاکه کومه ښځه د خپل مخصوص فطـــري حالاتوســـره مـــخ شي، نوکولای شي د ډېرو سهولتونو وجود لري، چې حتی لمونځ او روژه د رمضان خوړل ورته جایز دي.

رسول اللهﷺ په دې موضوع کې(په دین کې اساني) ډېر احادیث فرمایلي، چې څو نمونې یې ذکر کوو: (عَن عَائشة رضی الله عنها قالت قالَ رَسُولُ الله ﷺ إنَّ اللهَ رَفِيقٌ يُحِبُ الرِفقَ فِي الاَمرِكُلِهِ) ([1])

له حضرت عائشې رضی الله عنها څخه روایت دی چې رسول اللهﷺ فرمایلي: په تحقیق سره الله نرم دی په ټولو کارونو کې نرمي خوښوي.

همدارنګه فرمایي: (قالَ رَسُولُ اللهﷺ إذا أرادَ الله بِقَومٍ خَيراً دَخَلَ عَليهِم الرِفقٌ)

ژباړه: رسول الله ﷺپه دې حدیث کې فرمایي: کله چې الله تعالی یو قوم ته د خیرا اراده وکړي، نو په مابین کې یې نرموالی د زړونو او نرم خویونو راولي. یعنی په مابین کې نرمي روا جېږي، چې د هغې په اثر باندې هغوی ټول د یو له بل سره مشفق او مهربان وي.نفاق او اختلاف یې له مینځ ځي.

**د تدریس تګلاره:** پوښتنې او ځوابونه، انفرادي او ګروپي، توضیحي او تشریحي.

**مرستندویه درسي توکي:** کتاب، تخته، تباشیر......

| وخت | فعالیتونه |
|---|---|
| ۵دقیقې سریزه | ښاغلی ښوونکی وروسته له مقدماتي موضوعاتو څخه د ځوسوالونو په طرح کولو سره د تیر شوي درس ارزونه کوي. د مثال په توګه کولای شي ووایي: په کومو حالاتو کې دروغ ویل جواز لري؟<br>ښاغلی ښوونکی وروسته د اوریدلو د صحي ځوابونو |
| ۲۵دقیقې دلوست وړاندې کول | څخه زده کوونکو ته لارښوونه کوي، چې بحث وکوي، هغه کومې اسانه لارې چارې دي د هغې په وسیله سره خپل کارونه سرته ورسوي او ښاغلی ښوونکی مهم ټکي د تخې پرمخ لیکي.<br>ښاغلی ښوونکی د ټولګې د آخرڅخه له یو زده کوونکي نه پوښتنه کوي، چې آیا انسان په هغو کارونو مکلف دی، چې طاقت یې نه لري؟<br>ښاغلی ښوونکی د درس سرلیک په یو زده کوونکي باندې د تختې پرمخ لیکي.<br>ښاغلی ښوونکی زده کوونکو ته لارښونه کوي، چې درس د کتاب له مخې په خاموشانه ډول ولولي. که کوم سوال پیدا کیږي دځان سره یې د ولیکي او عین حال کې د پخپله لاندې جانبيي عناین د تختې پر مخ ولیکي:<br>– اسلام د اسانی دین دی.<br>– په ژوند کې د پیغمبرﷺ پیروي.<br>– د حلم مقام، عفوه او صبر.<br>– د احکامو دبې حرمتی څخه ځان ساتل.<br>ښاغلی ښوونکی له یو زده کوونکي څخه غواړي، چې د مبارک حدیث متن ترجمه او دکتاب له مخې ولولي.<br>بیا له بل زده کوونکي څخه غواړي، چې راوي د حدیث خپلو ټولګیوالو ته په شفاهي توګه معرفي کړي.<br>ښاغلی ښوونکی د جانبي عناوینو څخه په استفادې سره زده کوونکو ته درس تشریح کوي او د تشریح په جریان کې په ځینو مهمو ټکو ترکیز کوي.<br>ښاغلی ښوونکی څو زده کوونکو نه، چې دتشریح نوبت یې رسیدلی غواړي، چې هرنفر یو جانبي سرلیک د خپلو ټولګیوالو په وړاندې تشریح کړي. |

[1]– متفق علیه

| | |
|---|---|
| | ښاغلی ښوونکی زده کوونکي په مناسبو ګروپونو ویشي ورته دنده ورکوي، څود حکمت په هکله او په کارونو کې سهولت خپلو منځونو کې بحث وکړي سرګروپان هم هغه برسي کوي نتیجه د ټولګي په وړاندې بیانوي او خپله ښوونکی د ټولکي نظم او کنترول نیسي. |
| | **ارزونه:** |
| | ښاغلی ښوونکی د خپل اطمینان په خاطر زده کوونکي د درسي کتاب په وسیله ارزوي. |
| ۱۰دقیقې | **خلاصه:** |
| | دا درس په لاندې ټکو کې خلاصه کیږي. |
| | ۱ – د اسلام دین په ټولو امورو کې سهولت او آساني په نظرکې نیولې ده. |
| | ۲ – رسول اللهﷺ به کله چې په دوو کارونو کې مخیر کیده، نو اسانه به یې غوره کاوه . |
| | ۳ – په کارونو کې د اسانه کار اختیارول غوره دي په دې شرط، چې ګناه پکې نوي. |
| | ۴ – عفوه د الله په وړاندې غوره ده او کوم خوند چې په عفوه کې دی په غچ اخیستلو کې نشته. |
| | ۵ – د الهي احکامو درناوی د ایمان څخه سرچینه اخیستې ده او د هغو بې عزتي لویه ګناه ده آن تردې چې کفرته رسیږي. |
| ۵دقیقې | **کورنۍ دنده:** |
| | ښاغلی ښوونکی زده کوونکو ته دنده ورکوي، څو درس ټول نصوص د حدیث شریف په شمول سره د ترجمې په خپلو کتابچوکې ولیکي. |

پنځلسم لوست:

## سرلیک: دظلم مخنیوي

**مخ: ۴۹**

**وخت:** دوه درسي ساعتونه

**موخې:** زده کوونکي باید:

۱- د حدیث شریف متن سم ولوستلی شي.

۲- دحدیث شریف کلمې سمې زده کړای شي.

۳- د ظلم ډولونه وپیژندلای شي.

۴- له مظلوم سره د مرستې او کمک حس یې په ضمیرونو کې وده وکړي.

**اضافي معلومات:**

- ظلم په لغت کې د جفاپه معنا دی او په شرعي اصطلاح کې: (وَضع الشَی فِی غَیرِمَحلِهِ) یعنې له خپل ځای څخه غیر په بل ځای کې د یو شي اینښودلو ته وایي. یا په بل عبارت هرڅه چې د خپل حد نه تیری وکړي، ظلم ګڼل کیږي. ظلــم پــه درې ډوله دی:

۱- د الله په حق کې ظلم یعنې د الله په ذات او صفاتوکې شریک پیدا کول او یا د الله له ذات نه انکار کول دي.

د اظلم د بښنې وړ ندی، ځکه په دې کې د ایمان زوال دی. او داسې کسانو ته الله پاک په قرآن کې کافر ویلی دي. لکــه څنګه چې الله تعالی فرمايي: (وَالکفِرُونَ هُمُ الظّلِمُونَ) ([1]) ژباړه: کافران همدوی ظالمان دي.

همدارنګه الله فرمايي: (إنّ الشّرکَ لَظُلمٌ عَظِیمٌ) لقمان ۱۳ ژباړه: یقینا شرک ډېرلوی ظلم دی.

کله چې هوښیار او دشعور خاوند انسان د الله دیواځیني ذات نه چې دیوې حجرې نه تر لمر پورې او ټول لیــدونکي او نــه لیدونکي مخلوقات د ده د حقانیت دلیل دي، انکار کوي، نو یقینا د لوی جرم مرتکب شوي او د بښنې وړ نــه دي. بایــد ووایو چې انسان اصلا په الله ظلم نه دي کړی، بلکې په خپل ځان ظلم کوي اوځان د دوزخ وړ ګرځوي. ددې موضــوع د ثبوت لپاره الله داسې فرمايي: (وَمَا ظَلَمَهُمُ اللهُ وَلکِن کَانوُا أنفُسَهُم یَظلِمُونَ) ([2])

ژباړه: او دوی پر الله ظلم نه کړی، بلکې دوی پر خپلوځانونو ظلم کوونکي دي.

۲- ظلم پر خپل ځان: یعنې کله چې بنده د الله له حکمونو څخه سرغړونه کوي، حرامو ته مخه کوي او د شیطان له پیروي لاس کاږي، نو پدې صورت کې یې هم پرخپل ځان ظلم کړی او هم یې خپل خوږ ځان یې د عذاب وړ ګرځولی دی.

۳- د بندګانو په حق کې ظلم: یعنې په ناحقه د مسلمان وینې تویول، په آبرو یې تیری کول او مال یې غصب کول ښــکاره او څرګند ظلم دی. اسلام خپل پیروان د ظلم او تیري نه په جدي توګه منعه کړي او ظلم یې پر دوی حرام کړی. د اســلام پیغمبرﷺ فرمایلي: (کُلّ مُسلِمٍ عَلی المُسلِم حَرامٌ دَمُهُ وَمَالهُ وَعرضُهُ) {رواه مسلم}.

ژباړه: دمسلمان هرڅه پربل مسلمان حرام دي وینه یې، مال یې او عزت یې.

[1] سوره بقره آیت ۲۵۳

[2] سوره النحل – آیت ۳۳

انسان باید همیشه د خپلو همجنسو په وړاندې ښېګنه وکړي. د ظلم او تیري نه ځان وژغوري. الله تعالی ممکن لـــه خپــل حق څخه ښښنه وکړي، خو د بنده حق نه ښښي او که موضوع آخرت ته پاتې شي یعنې ظالم د مظلوم حق په دنیــا کــې اداء نکړي، نو نیکۍ به یې ورځنې واخیستل شي، لکه چې رسول اللهﷺ فرمایي: (مَن كانَت لهُ مَظلِمَةٌ لاخيهِ مِن عَرضِـه أو شَــئ فَليَتحَللهُ مِنهُ اليَوم قَبلَ أن لا يَكُونَ دِيناروَلادرَهَم إن كانَ لهُ عَمل صَالح أخَذمِنهُ بِقدرِمَظلِمَتهِ وَإن لَم يَكُن لهُ حَسَناتٌ أُخَذَ مِــن سَيئات صَاحِبه فَحَمَل عَليهِ) {رواه البخارى}

ژباړه: چاچې د خپل وړور په حق کې ظلم کړی وي، آبرو یې توی کړي وي او یا کوم بل شي، لکه: غیبت، کنځلې او یــابې وینې بهولې وي او یاېې مال ورځنې اخیستی وي، باید د هغه څخه ښښنه وغواړي او خپل ظلم نن ورځ په دنیــا کــې جبیــره کړي، مخکې له دې چې نه له ده سره دینار اونه درهم وي، چې د قیامت په ورځ یې د ظلم بدله وګرځوي. دغیبت په هکلــه توبه ایستل کافي دي که د ښښنې غوښتل ممکن نه وو اما د مال په غصبولو کې توبه کافي نده که موضوع آخرت ته پاته شوه یعنې که په دنیا کې اداء نشو.

که چیرې ظالم نیک عمل ولري، نو دخپل ظلم په کچه ورځنې اخیستل کیږي او که نیک عمل ونلري، نود مظلوم بدي پــر ظالم اچول کیږي.

په حدیث کې راځي: (عَن إبن عُمر أن النَّبى ﷺ قالَ ألظُّلم ظُلُمات يَوم القِيمَة) {متفق عليه}

له ابن عمر څخه روایت دی چې نبي کریمﷺ فرمایلي: ظلم دقیامت په ورځ د تیارو لامل کیږي. (ظالم په هغه ورځ له هــر اړخه تیارې په ځان کې را نغاړي اوله انوارو څخه محرومیږي)

دسیرت په کتابونو کې راغلي کله به چې رسول اللهﷺ د پخوانو ظالمانو په کلیو تیریده نو صحابه وو ته به یې فرمایل: له دې کلیو څخه عاجزي کوونکي او ژړیدونکي تیرشئ لکه څنګه، چې دابن عمر رضی الله عنهما په حدیث کې هم راځي. (عَن إبن عُمر أن النَّبى ﷺ لّمَامَرَّ بالحجرِقالَ لا تَدخُلوا مَسَاكِنَ الذِينَ ظَلمُوا أنفُسَهُم إلاّ أن تَكُونُوا بَاكِين أن يُصبَكُم مَا أصَابَهُم ثُم قَنَّعَ رَاسَهُ وَأسرَع حَتَّى إجتَازالوَادِى) {متفق عليه}

له حضرت عبدالله ابن عمر رضی الله عنهما څخه روایت دی: کله چې نبي کریمﷺ د حجر له سیمې څخه (دصالحؑ د قوم ثمودیانو ځمکه ده) تیریده او د تبوک دغزوې هوډ یې درلود، نو صحابه وو ته یې وفرمایل: د هغو کسانو ځایونو ته چې پــر خپلو نفسونو یې ظلم کړی و(کفریې غوره کړی و او خپل پیغمبریې دروغجن ګڼلی و) مه داخلیږئ، مګــر داچــې تاســې ژړیدونکي او عبرت اخیستونکي و اوسئ. له دې ځای په غفلت مه تیریږئ، څو تاسې په هغه څه اخته نشئ په کوم چــې دوی اخته شوي وو. بیا رسول اللهﷺ خپل سر پټ کړ او په تیزی له صحابه وو سره له هغه دښتې تیرشو.

رسول اللهﷺ همیشه خپل یاران د مظلوم له ښیراوو څخه ژغورل لکه څنګه چې حضرت عليؓ دا حدیث نقــل کــړی دی: عَن عَلىٍّ قالَ قالَ رَسُولُ الله ﷺ إيّاكَ وَدَعوَةَ المَظلُوم فَإنَّمَا يَسألَ الله تَعَالى حَقَّهُ وَإنَّ اللهَ لا يَمنَع ذَاحَقٍّ حَقّهُ {رواه البيهقى}

ژباړه: د حضرت عليؓ نه روایت دی چې رسول اللهﷺ وفرمایل: د مظلوم له ښیرا څخه ځان ژغوره، ځکه دی له الله څخــه خپل حق غواړي او په باوري توګه الله تعالی له حق د خاوند نه خپل حق نه منع کوي.

او همدارنګه له ظالم سره د مرستې په هکله په عذاب کې راغلی چې حضرت اوس بن شرحبیلؓ هغه روایت کړی دی. عَن أوسٍ بن شُرحَبيل أنَّهُ سَمَع رَسُولَ الله ﷺ يَقولُ مَن مَشِىَ مَع ظَالِم لِيُقوِّيهُ وَهُوَيَعلَم أنّهُ ظَالِم فَقد خَرَجَ مِنَ الإسلاَم {رواه البيهقى}

ژباړه: له حضرت اوس بن شرحبیلﷺ څخه روایت دی: بې شکه ده له رسول اللهﷺ څخه اوریدلي دي چې فرمایل یې: څوک چې له ظالم سره ملتیا او له هغه سره مرسته کوي څو هغه پیاوړی شي په داسې حال کې چې دی پرې پوهیږي چې ظالم دی، نو یقینا د اسلام له دایرې وتلی دی.

**دځینوکلمو معنا:**(ظلم: تیری) (ظالم:تیری کوونکی) (مظلوم: ظلم کړی شوی) (نزاع:اختلاف – دعوا) (مقدس: پاک، پاکیزه) (جاهلیت: داسلام څخه مخکې زمانه)

**د تدریس تګلاره:** پوښتنې او ځوابونه، انفرادي او ګروپي، توضیحي او تشریحي

**مرستندویه درسي توکي:** کتاب، تخته، تباشیر.....

| وخت | فعالیتونه |
|---|---|
| ۵دقیقې سریزه | ښوونکی له مقدماتي موضوعاتو څخه وروسته د څو پوښتنو په طرح کولو سره د تیر شوي لوست ارزونه کوي. دبیلګې په توګه څوک کولای شي د حدیث د دغې برخې (مَا خُيِّرَبَيَنَ أمرَينِ قَطٌ) معنا د ټولګي په تخته ولیکي؟ |
| ۲۵دقیقې د لوست وړاندې کول | ښوونکی د ځوابونو له اوریدلو څخه وروسته د لوست په تخته لیکي او زده کوونکو ته ظلم تعریفوي.<br>ښوونکی له زده کوونکو څخه غواړي، چې هر څپل ځان سره ظالم په دوو کرښو کې لیکلی معرفي کړي.<br>ښوونکی د نمونې په ډول له څو زده کوونکو څخه غواړي، چې څه یې لیکلی، نورو زده کوونکو ته یې ولولي.<br>ښوونکی له یوه زده کوونکي څخه چې نسبتا یې پاملرنه لږه وي پو ښتنه کوي: هغه کومه بده ستونزه ده چې په هره وخت کې شتون لري او الله تعالی هغه حرامه کړې وي او عمل کوونکي یې ملعون کړي وي ؟<br>ښوونکی زده‌کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست په پټه خوله ولولي او پخپله پدې وخت کې د ظلم، ظالم، مظلوم، نزاع، مقدس اوجاهلیت کلمې پر تخته لیکي.<br>ښوونکی هغه ستونزمنې کلمې چې د تختې پر مخ لیکل شوې دي، پر زده‌کوونکو ژباړي، وروسته یوه زده‌کوونکي ته بلنه ورکوي چې د تختې مخې ته راشي او هغه کلمې له معنا سره ولولي. ښوونکی د زده‌کوونکو تیر وتنې سموي او له یو زده‌کوونکي څخه غواړي چې کلمې له معنا سره ولولي، او په عین وخت کې له زده‌کوونکو څخه غوښتنه کوي چې د لوست ستونزمنې کلمې په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>ښوونکی یوه زده کوونکي ته لارښوونه کوي چې د لوست څنګیز سر لیکونه د تختې پر مخ ولیکي.<br>ښاغلی ښوونکی له څنګیز سر لیکونو څخه په ګټه اخیستلو سره لوست تشریح کوي او په ارزښتناکو کلمو باندې ډېر ټینګار کوي.<br>ښوونکی د لوست له توضیح څخه وروسته زده‌کوونکو ته لارښوونه کوي چې د تختې پر مخ لیکلې کلمې په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>ښوونکی له دوو زده کوونکو څخه غواړي چې یو یې څنګیز سر لیکونه ولولي او بل یې پر تخته ولیکي:<br>– د حدیث حکمت.<br>– د ظالم لاس نیول ضروري دي.<br>– له مظلومانو سره مرسته لازمي ده.<br>– له ظالم سره مرسته یعنې څه؟<br>ښوونکی څنګیز سر لیکونه په یوه زده کوونکي د تختې له مخې په لوړ اواز لولي. |

| | |
|---|---|
| ښوونکی هغه ستونزمنې کلمې چې د تختې پر مخ لیکل شوې دي، پر زده‌کوونکو ژباړي وروسته یوه زده‌کوونکي ته بلنه ورکوي چې د تختې مخې ته راشي او هغه کلمې له معنا سره ولولي. ښوونکی د زده‌کوونکو تیر وتنې سموي، او له یو زده‌کوونکي څخه غواړي چې کلمې له معنا سره ولولي، او په عین وخت کې له زده‌کوونکو څخه غوښتنه کوي چې د لوست ستونزمنې کلمې په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>ښوونکی یو زده کوونکی ته لارښوونه کوي چې د لوست څنګیز سر لیکونه د تختې پر مخ ولیکي.<br>ښوونکی له څنګیز سر لیکونو څخه په ګټه اخیستلو سره لوست تشریح کوي او په ارزښتناکو کلمو بانـدې ډېر ټینګار کوي.<br>ښوونکی د لوست له توضیح څخه وروسته زده‌کوونکو ته لارښوونه کوي چې د تختې پر مخ لیکلې کلمې په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>ښوونکی زده‌کوونکي په څو ډلو وېشي او دنده ورکوي چې د نامتو صحابه حضرت ابو هریرةﷺ د شخصیت په اړه یو له بل سره بحث او خبرې وکړي.<br>ښوونکی د ګروپونو د کار په وخت کې ټولګی کنترول او نظم برابروي او د اړتیا په صورت کې د ډلو په بحث کې ګډون کوي.<br>ښاغلی ښوونکی له هر یې ډلې څخه غوښتنه کوي چې ځان ته یو مشر وټاکي او د بحث پایلې په یوه پاڼه کاغذ کې ولیکي او د دوی مشر دې هغه کلمې د ټولګیوالو په وړاندې د ټولګي په مخ کې ولولي. | ۱۰دقیقې |
| **ارزونه:**<br>ښوونکی د بحث پایلې ارزوي. زده‌کوونکي خپلو تیر وتنو ته متوجه کوي او هڅوي یې.<br>**لنډیز:**<br>له دې لوست څخه لاندې نکتې لنډیز کیږي:<br>۱- باید مسلمان د ظالم لاس له ظلم څخه ونیسي چې دا پخپله له هغه سره مرسته ده.<br>۲- اسلامي دولت باید د مظلومانو احوال واخلي او له هغو څخه دفاع وکړي.<br>۳- ظلم د بد بختۍ او د الله د قهر لامل ګرځي.<br>۴- د ظالمانو یا مجرمانو مرسته چې حق یې نه وي په حقیقت کې د جاهلیت د له وخته سره تړاو لري. | |
| **کورنۍ دنده:**<br>ښوونکی زده‌کوونکو ته لارښوونه کوي چې حدیث شریف په کور کې ژباړې سره حفظ کړي . | ۵دقیقې |

شپاړلسم لوست:

# سرلیک: د غضب درملنه

**مخ: ۵۲**

**وخت:** دوه درسي ساعتونه

**موخې:** زده کوونکي باید:

۱- د حدیث شریف متن سم ولوستلی شي.

۲- د حدیث شریف موخه او غوښتنه درک کړلی شي.

۳- دحدیث شریف کلمې سمې زده کړای شي.

۴- د قهر او غضب په هکله نورو ته خبرې وکړلای شي.

**اضافي معلومات:**

– قهر او غوسه یو فطري څیز دی، چې په ډېرو وختونوکې انسان ته راځي عقل یې ترتأثیر لاندې راولي او پــه دې اســاس پرټول بدن باندې حکم کوونکی ګرځي. اما د دغه څیز اصلي تحریکوونکی شیطان ملعون دی. شیطان د غوسې پــه حالــت کې انسان زشت او ناروا کارونو ته را بولي. له غوسې او شیطان څخه د خلاصون ډېره ښه لاره اودس کول دي.

د اسلام دین تل خپل پیروان د اعصابو راحت ته رانغاړي او تشویق کوي یې. لکه څنګه چې الله عزوجل فرمایي: (وَسَــارِعوُا اِلى مَغفِرةٍ مّن رِّبكمُ وَجَنّةٍ عَرضُهَا السّمَواتُ وَالارضُ اُعِدَت لِلمُتقِين*الّذِينَ يُنفِقُونَ فِى السَّرَّآءِ وَالــضرّآءِ وَالكظِمِــينَ الغَــيظَ وَالعَافِينَ عَنِ النَّاس وَاللهُ يُحِبُ المُحسنِينَ) ۱۳۳ او۱۳۴ آل عمران سورت.

ژباړه: پر هغه لاره په منډه منډه وځغلئ چې ستاسې د پروردګار دبښنې او د هغه د جنت خواته تللې ده چې هغــه لکــه د اســمانونو او ځمکې په شان پراخ دی او هغه له خدایه د وېرېدونکیو خلکو لپاره تیار کړای شویدی د هغو لپاره چــې دبــډایی او بېــوزلی پــه دواړو حالاتو کې مال مصرفوي، غوسه غوري او د نورو لنډ پاری بښې داسې نېکان خلک د خدای ډېر خوښ دي.

– قهر او غوسه زیات ځایونه لري البته په بعضې ځایونو کې د تأیید وړ وي. له هغه یې غوسې څخه په اسلام کې دغیــرت او ایمــاني احساساتو په تعبیر سره یاده شوې. هغه غوسه د تأیید وړ ده چې کله د الله د حدودو او د الله د احکامو په وړاندې بې عزتــي وشــي. په داسې حالاتو کې غوسه او قهر نکول بې له سستی ا وضعف څخه بل مفهوم نلري. یعنې که چیرې څــوک د الله د حکمونــو یــا درسول اللهﷺ د سنتو بې پروایي او بې عزتي کوي باید د مؤمن په ضمیر کې احساسات او غوسه راوپارېږي، چې دا قهر لــه ایمــان څخه سرچینه اخلي. حضرت موسیعليه السلام کله چې د تورات د حکمونو اخیستلو ته د سینا غره ته لاړ، ســره لــدې چــې حــضرت هارونعليه السلام یې د خپل ځان نماینده وټاکه اما اکثریت د قوم ګمراهی او شرک ته مخه کړې وه، نو حضرت موسیعليه السلام کلــه چــې را وګرځید هغوی یې مشرکان ولیدل، په غوسه شو، نو قهر اوغوسه د موسیعليه السلام هم له ایماني او دیني احساساتو څخه وه.

او که چیرې انسان په داسې حالاتو کې بې تفاوتي یا محافظه کاري وکړي، شاید د الله تعالی دقهر لاندې راشي، لکــه: همغــه مجــرم غوندې ګڼل کیږي، لکه هغه عابد چې د نورو د جرم په وړاندې یې بې تفاوتي غوره کړې وه او په څیره کې یــې د هغــوی د ارتکــاب له امله بدلون نه راتللو نه راتله چې په پای کې یې برخلیک دنورو په څیر شو. په حدیث کې دا عبرتناکه قصه لــه حــضرت جــابرﷺ د رسول اللهﷺ څخه روایت ده: (عَن جَابرٍ قالَ قالَ رَسُولُ الله ﷺ أوحى الله عَزُوجَل إلى جبرَئيل عَليه السَلام أنِ أقلُّــبَ مَدِينَــة كَــذا وَكَــذا باهلِهَا فَقَالَ يَا ربّ إنَّ فِيهِم عَبدِكَ فَلاناً لَم يَعصِک طَرفَةَ عَينٍ قالَ أقلبهَا عَليه وَعَلَيهِم فَإنَّ وَجَهَه لَم يَتَمَعّرُ فِى سَّاعَةً قَطّ) {رواه البيهقى}

له حضرت جابرﷺ څخه روایت دی چې رسول اللهﷺ وفرمایل: الله متعال حضرت جبرئیلعليه السلام ته حکم وکړ، چې فلاني ښار له اوسیدونکو سره چپه کړه. حضرت جبرئیلعليه السلام وفرمایل: ای الله په هغه کې ستا هغه فلاني بنــده دی او هیڅکلــه یــې د

سترګو د رب په اندازه ګناه نده کړي! الله فرمايي: ورباندې يې چپه کړه، څکه هغه به د دوی د نافرمانۍ په وړانــدې خپــل تندی د الله په خاطر ترو هم نکړ. متآسفانه ځيني مسلمانان نن ورځ په دې حالت کې قرار لري او د مسؤليت احساس نکوي.

**دځينوکلمو معنا:** (حنين: طائف او مکې تر منځ له مکې څخه د ۲۶ کيلو مترو په واټن لرې د يوې درې نوم .رســول اللهﷺ هلته د غزوې لپاره تشريف وړی و) (حواس: دحس جمع ده – بې له آواز څخه حرکت) (مضطرب – پريشانه) (اختلاــل – خلل) (استيلاء – غلبه) (قايم – ولاړ– ثبات) (تأنی – ځنډ ايستل، آهسته کيدل)

**د تدريس تګلاره:** پوښتنې او ځوابونه، انفرادي او ګروپي، توضيحي او تشريحي

**مرستندويه درسي توکي:** کتاب، تخته، تباشير.....

| وخت | فعاليتونه |
|---|---|
| ۵دقيقې سريزه | ښاغلی ښوونکی ټولګي ته له ننوتلو سره سم له سلام اچولو، د الله تعالی له حمــد او ثنــاء لــه ويلــو د زده‌کوونکو له احوا ل پوښتنې، د ټولګي له تنظيم او د حاضرۍ له اخيستلو څخه وروسته د هڅــونې پــه غرض د لوست د سرليک د پيداکولو په اړه له زده‌کوونکو څخه پوښتنې کوي، مثلاً: څوک ويلای شــي چې چاته ظالم ويلای شو؟<br>ښوونکی دې د پورتنۍ پوښتنې د سم ځواب له اورېدلو څخه وروسته د لوست ســرليک چــې(دغــضب درملنه) ده، د زده‌کوونکي په لاس پر تخته باندې په ښکلي او ښايسته خط وليکي. |
| ۲۵ دقيقې د لوســت وړانــدې کول | ښوونکی د ټولګي له اخر څخه دوه زده کوونکي غواړي چې يو يې څنګيز سر ليکونه ولولي او بل يــې د تختې پر مخ ليکي:<br>– غضب ضعف دی اوصبرقوت.<br>– د قهر او غوسې بدې پايلې.<br>– ټولنيز زيانونه.<br>– د قهر او غضب لامل.<br>– د غضب علاج .<br>ښوونکی له زده‌کوونکو غواړي چې ټول لوست په پټه خوله مطالعه کړي او د مهمو ټکو لانــدې کرښــه وباسي او خپله پدې وخت کې داکلمې: حنين، حواس، مضطرب، اختلال، استيلاء، قايم وتأنی په معناسره پر تخته ليکي.<br>ښوونکی لومړی د لوست ستونزمنې کلمې او د هغو سمې معناوې زده‌کوونکو ته د تختې پر مــخ تــشريح کوي او ددې تر څنګ له دوی څخه غواړي چې هغه کلمې له معناوو سره په خپلو کتابچو کې وليکي.<br>ښاغلی ښوونکی زده‌کوونکي په درېو يا څلورو ګروپونو وېشي او تنظيموي يې، دوی ته لارښــوونه کــوي چې د قهر او غوسې په هکله يو له بل سره خبرې وکړي بيا يې په لنډ ډول په يوه پاڼه کاغذ کې وليکــي او ښوونکی د دې لړۍ سرپرستي کوي.<br>ښوونکی د زده‌کوونکو د بحث پر وخت د اړتيا په صورت کې له دوی سره ګډون کــوي او کمــزوري زده‌کوونکي زيات هڅوي.<br>ښاغلی ښوونکی د ډله ييز کار له پای ته رسېدو وروسته د هرې ډلې له مشر څخه غواړي چــې د ټــولګي مخې ته راشي او د بحث پايلې ټولو زده‌کوونکو ته ووايي، خپله د دوی دکار پايلې ارزوي او تير وتنې يــې له توهين پرته اصلاح کوي. |

| | |
|---|---|
| ۱۰دقیقې | **ارزونه:**<br>ښوونکی د خپل ځان د ډاډه کولو لپاره زده‌کوونکي د درسي کتاب په پوښتنو باندې ارزوي.<br>**لنډیز:** دا لوست په لاندې ټکو کې لنډیز کولای شو.<br>۱- د الله تعالی ذکر کول او اودس کول د قهر او غوسې لپاره بهترین علاج دی، ځکه شیطان د ذاکرینـــو په زړه کې ځای نه لري.<br>۲- زر په غوسه کیدل د انسان په کمزوری دلالت کوي صبر او حوصله د انسان په قوت دلالت کوي.<br>۳- قهر او غوسه د انسان عقل له منځه وړي او انسان د خپل ځان تابع ګرځوي.<br>۴- غضب ډېر زیانونه لري مثال د ټولنې او خلکو په وړاندې رټل کیدل.<br>۵- په ځینو ځایونو کې قهر او غوسه روا ده همدارنګه غیرت، ایماني احساس او دیني دی |
| ۵دقیقې | **کورنۍ دنده:** ښوونکی زده‌کوونکو ته د کورنۍ دندې په اړه معلومات ورکوي، د هغې په سرته رسولو ګماري. |

اوه لسم لوست:

## سرليک: غوره خلک

**مخ: ۵۵**

**وخت:** دوه درسي ساعتونه

**موخې:** زده کوونکي باید:

۱- د حدیث مبارک حفظ وکولای شي.

۲- د حدیث شریف مفهوم او معنا درک کړلی شي.

۳- د حدیث شریف موخه په خپل ژوند کې رعایت کړلی شي.

۴- د لوست متن سم ولوستلای شي او له مطلب څخه یې اخیستنه وکړلی شي.

**اضافي معلومات:**

هر مسلمان د خپل ایمان او اخلاقو په نسبت له خپل ځانګړی مقام څخه برخمن دی. مقام او مرتبه په شخصیت پورې تړلې ده. یعنې شخصیت او ایمانداري د یو بنده له اخلاقو، کړنو او معاملې څخه معلومېږي. نیک اخلاق خپلې ځانګې لري. چې یوه یې د نورو خلکو په وړاندې خیر رسول او خیر غوښتل دي.

-چا چې پدې نیک صفت منګولې لګولې او دا لوړ اوصاف یې دځانونولپاره غوره کړي دي رسـول اللهﷺ دوی د بهترینـو خلکو له ډلې څخه بللي دي.

هغه څوک کولای شي لدې ډلې څخه حساب شي، چې نورو ته یې معنوي او یا مادي خیر په عمل کې رسیدلی وي او خلکو په عمل کې ورڅخه ګټه تر لاسه کړې وي، نه دا چې یوازې په شعار ویلوسره.

خیر رسول له دوو لارو صورت ونیسي اویا په دوه ډوله دی. یو یې مادي او بل یې معنوي.

۱- مادي خیر: لکه څوک چې د خپلې فزیکي قوې او یا دلاس او ژبې او یا د خپل مال او پیسو. او یاهم دقلـم او خپلـو اسبابو په وسیله دخلکو لپاره د ګټې او خدمت مصدر ګرځي، چې دا ټولې پورتنې برخې د خیر الناس په مصداق کې راځـي پدې شرط سره چې نیت اوموخه یې یوازې د الله رضاوي.

۲- معنوي خیر: په مثال دهغه چاچې د الله د رضا لپاره مسلمانانو او یا یې اولادونو ته ښوونه او روزنه ورکړي خصوصا پـه قرآني او دیني ښوونه او روزنه کې. دغه شان خلک هم د خیرالناس تر مصداق لاندې راځي. لکـه رسـول اللهﷺ د داسـې بهترینو کسانو په هکله فرمایي: روای یې هم حضرت امیرالمؤمنین عثمان بن عفانرضي الله عنه دی. (عَن عُثمَان قالَ قالَ رَسُـولُ اللهِ ﷺ خَیرُکُم مَن تَعلّمَ القُرآنَ وَعلّمَهُ ) {رواه البخاری}

ژباړه: له حضرت عثمانرضي الله عنه څخه روایت دی، چې رسول اللهﷺ فرمایلي: تاسو کې هغه څوک دی چې قرآن زده کړي اونورو ته یې وښیي.

رسول اللهﷺ نورو ته د خیر رسوونکو فضیلتونه زیات بیان کړي دي، چې څو یې د نمونې په توګه یادوو کـوو. (عَـن إبـن عُمرأنّ رَسُولَ الله ﷺ قالَ ألُمسلِمُ أخُوالُمسلِم لاَ یَظلِمُه ُولا یَسلِمُهُ وَمَن کانَ فِی حَاجَةِ أخِیهِ کانَ الله ُفِی حَاجَتِه وَمَن فَرّجَ عَن مُسلم کُربَةً فَرّجَ الله ُعَنهُ کُربَةٍ مِّن کُربَاتِ یَومَ القِیمَةِ وَمَن سَترَمُسلِماً سَتَرهُ الله ُیَومَ القِیمَة) {متفق علیه}

ژباړه: له حضرت ابن عمر رضی الله عنهما څخه روایت دی په تحقیق سره رسول اللهﷺ وفرمایل: مسلمان د مـسلمان ورور دی، ظلم دې پرې نه کوي او نه یې دې ت دښمن تهسلیموي او څوک چې د چا په حاجت کې وي، نو الله د هغه په حاجت کې دی او چاچې له مسلمان څخه سختي لرې کړه، نو الله به د قیامت په ورځ له ده څخه سختی لرې کړي او چـاچې یـو مسلمان پټ کړ، نو الله به د قیامت په ورځ دی پټ کړي یعنې عیبونه به یې پټ کړي.

همدارنگه حضرت ابوهریرهﷺ دا حدیث د رسول اللهﷺ څخه روایت کړی دی: (عَن أبی هُرَیرَة قالَ قالَ رَسُولُ الله ﷺ مَن نَفَّسَ عَن مُؤمِن كُربَةً مِّن كُربِ الدُنیَا نَفسَّ اللهُ عَنهُ كُربَةَ مِن كُربِ یَومَ القِیمَةَ وَمَن یَسَرَّ عَلی مُعَسرٍ یَسَّرَاللهُ عَلیهِ فِی الدُنیَا وَالاخِرةِ وَمَن سَترَ مُسلِماً سَترَهُ اللهُ فِی الدُنیا وَالاخِرةَ وَاللهِ فِی عَونِ العَبدِ مَاكانَ العَبدُ فِی عَونِ أخِیه) {رواه مسلم}

ژباړه: له ابي هریرهﷺ څخه روایت دی، چې رسول اللهﷺ فرمایلي دي: چاچې له یو مسلمان څخه دنیایي غم یا تکلیف لرې کړ، نو الله به د قیامت په ورځ له ده څخه د آخرت غمونه او تکلیفونه لرې کړي او چاچې سختي یا تکلیف لرې کړ نو الله به له ده څخه د دنیا او آخرت تکلیفونه اوسختی لرې کړي، چاچې د مسلمان عیبونه پټ کړل، نو الله به په دنیا او آخرت کې دده عیبونه پټ کړي او الله د خپل بنده په مرسته کې دی تر هغه دبل ورور په کومک اومرسته کې وي. (مراد یې دیني ورور دی)

په لاندې حدیث کې د خیر رسولو داده چې سړی جنت ته داخلوي.

(عَن أنس قالَ قالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ مَن قَضی لأحدٍ مِن اُمَّتِی حَاجَةً یُرِیدُ أن یَّسرّهُ بِهَا فَقد سَرَّنی وَمَن سَرَّنی فَقد سَرَّالله وَمَن سَرّالله أدخَلهُ اللهُ الجَنّة) {رواه البیهقی}

ژباړه: له حضرت انسﷺ څخه روایت دی، چې رسول اللهﷺ فرمایلي دي:

څوک چې زما له یو امتي څخه یوه اړتیا لرې کړي او موخه یې دده خوشحالي وي، نو په حقیقت کې یې زه خوشحاله کړی یم او چاچې زه خوشحاله کړم، په حقیقت کې یې الله خوشحاله کړی دی، څوک چې الله تعالی خوشحاله کړي هغه به یې جنت ته داخل کړي.

**دځینوکلمو معنا:** (مفتي: فتوا ورکوونکی) (مجتهد: کوشش کوونکی او په شرعي اصطلاح کې یې په هغه چا اطلاق کیږي، چې له نصوصوڅخه د احکامو په را ایستلو کې هڅه او هاند کوي) (نافع: نفع رسوونکی) (عوام: عام وګړي دخواصو ضد) (رفع: پورته کول)

**د تدریس تګلاره:** پوښتنې او ځوابونه، انفرادي او ګروپي، توضیحي او تشریحي

**مرستندویه درسي توکي:** کتاب، تخته، تباشیر....

| وخت | فعالیتونه |
|---|---|
| ۵دقیقې سریزه | ښوونکی ټولګي ته له ننوتلو سره سم له سلام اچولو، او د الله تعالی له حمد او ثناء او پر پیغمبرﷺ باندې له درود ویلو، د زده‌کوونکو له احوا ل پوښتنې، د ټولګي له تنظیم او د حاضرۍ له اخیستلو وروسته مخکینی لوست د کورنۍ دندې په کتلو سره چې په هغې کې د حدیث شریف حفظ هم شامل دی ارزوي.<br>ښوونکی د نوي لوست په اړه د انګېزې او نوي لوست ته د سرلیک پیدا کولو په موخه له څو زده‌کوونکو څخه پوښتنې کوي، لکه: څوک کولای شي چې د ښه انسان صفتونه بیان کړي؟ |
| ۲۵ دقیقې د لوست وړاندې کول | ښوونکی دې د پورتنۍ پوښتنې د صحیح ځواب له اورېدلو څخه وروسته له یوه زده‌کوونکي څخه وغواړي چې د لوست سرلیک (غوره خلک) پر تخته په ښکلي او ښایسته خط ولیکي.<br>ښوونکی زده‌کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست په پټه خوله ولولي او پخپله پدې وخت کې د حدیث شریف د متن ستونزمنې کلمې له معنا سره پر تخته لیکي.<br>ښوونکی په یو بې زړه زده‌کوونکي د حدیث شریف متن چې په کاغذ کې لیکل شوی، د تختې په یوه کونج کې ځړوي.<br>ښوونکی د حدیث شریف متن د بیلګې په څېر لولي او له زده‌کوونکو څخه غواړي چې خپلو کتابونو ته په ځیر وګوري.<br>ښوونکی د حدیث شریف متن په څو تکرړه زده‌کوونکو باندې تکراروي او وروسته له نورو پاتې زده‌کوونکو |

غواړي چې هغه لوست ولولي چې د ټولو زده‌کوونکو له سمو لوستلو څخه ښه ډاډمن شي.
ښوونکی لومړی د لوست ستونزمنې کلمې او د هغو سمې معناوې زده‌کوونکو ته د تختې پر مخ تشریح کوي او ددې تر څنګ له دوی څخه غواړي چې هغه کلمې له معناوو سره په خپلو کتابچو کې ولیکي.
ښوونکی چې کله د لوست له سم لوستلو څخه ډاډه شي د حدیث شریف متن ژباړي او دا کار درې ځلـــه تکـــراروي چې ټول زده‌کوونکي د حدیث په معنا پوه شي.
ښوونکی له زده‌کوونکو غواړي چې ټول لوست په پټه خوله مطالعه کړي او تر مهمو ټکو لاندې کرښه وباسي او خپله پدې وخت کې د لوست څنګیز سر لیکونه پر تخته لیکي.
ښوونکی زده‌کوونکي په دریو یا څلورو ډلو وېشي او تنظیموي یې، دوی ته لارښوونه کـــوي چـــې د غـــوره خلکو او غوره اخلاقو په اړه یو له بل سره بحث وکړي او د بدو خلکو او بدو اخلاقو په اړه هم یو لـــه بـــل سره خبرې وکړي. بیا یې په لنډ ډول په یوه پاڼه کاغذ کې ولیکي او ښوونکی د دې لړۍ سرپرستي کوي.
ښوونکی د زده‌کوونکو د بحث پر وخت د اړتیا په صورت کې له دوی سره ګـــډون کـــوي او کمـــزوري زده‌کوونکي زیات هڅوي.
ښوونکی د ډله ییز کار له پای ته رسېدو وروسته د هرې ډلې له مشر څخه غواړي چې د ټولګي مخـــې تـــه راشي او د بحث پایلې ټولو زده‌کوونکو ته وواییې، خپله د دوی دکار پایلې ارزوي او تیر وتنې یې له تـــوهین پرته اصلاح کوي.

**ارزونه:**

ښوونکی دې په شفاهي او یا کتبي ډول زده‌کوونکي و ارزوي او د لوست د زده کړې په هکلـــه دې ځـــان ډاډمن کړي.

**لنډیز:**

۱۰دقیقې

پورتنی لوست په لاندې ټکو کې لنډولای شو:

۱– غوره خلک هغه کسان دي، چې عملاً د خلکو په خدمت کې وي.

۲– خدمت او نفعه په دوه ډوله ده یو معنوي او بل مادي.

۳– مرسته او خیر رسول له راسخ ایمان او ښو اخلاقو څخه ده.

۴– معلومه شوه چې بد خلک هغه دي چې نورو ته یې زیان رسیږي.

**کورنۍ دنده:**

۵دقیقې

ښوونکی زده‌کوونکو ته د هغې کورنۍ دندې په اړه چې په درسي کتاب کې ورکړل شـــوې ده، معلومـــات ورکوي او د خپلو لازمي معلوماتو په سرته رسولو کې زده‌کوونکي مکلفوي او ټینګار کوي چـــې مبـــارک حدیث حفظ کړي.

اتلسم لوست:

## سرلیک: د ایمان څانگې

**مخ:** ۵۷

**وخت:** دوه درسي ساعتونه

**موخې:** زده کوونکي باید:

۱– د لوست متن سم ولوستلای شي.

۲– د حدیث شریف معنا اومفهوم وپیژني.

۳– د ایمان له څانگو سره بلدتیا پیدا کړای شي.

۴– په خپلو کړو او وړو کې د حیاء نښې او نښانې ځرگندې کړای شي.

**اضافي معلومات :**

– ایمان په لغت کې باور او تصدیق ته ویل کیږي او دشرعې په اصطلاح کې په ټولو هغو ویناوو او هغه شیانو چې د الله له لوري یې راوړي دي، باور درلودل دي.

– د ایمان اصول درې شیان دي. یا په بله وینا د ایمان اساسي محور درې شیان تشکیلوي: توحید، رسالت او معاد چې دا درې اصول ټولو مؤمن به شیانو ته شاملیږي. دبېلگې په توگه له مرگه وروسته په ژوندي کیدو ایمان درلودل، په جنت او دوزخ باندې ایمان درلودل په معاد پورې اړه لري.مؤمن هغه څوک دی په غیبي امورو پوره باور او ایمان ولري او مسلمان هغه څوک دی، چې د قلبي تصدیق سره د اسلام ظاهري کارونه هم تر سره کوي.

که چیرته د اسلام او ایمان کلمې یو ځای ذکر شي، نو له ایمان څخه مراد شرعي ایمان دی او داسلام هدف د اسلام پنځه بناوې دي، خوکله چې جلا جلا ذکر شي، نو دواړه یوه معنا ورکوي، لکه مؤمن د مسلمان په معنی او مسلمان دمؤمن په معنا دی.

– د ایمان ضد کفر دی چې هیڅکله له ایمان سره یو ځای کیدای نشي. کفر د انکار په معنا دی او په اصطلاح کې له هغو دریو اصولو یا یو له هغو نه انکار دی.

– مراد له تصدیق څخه یوازې پوهیدنه او پیژندنه نده، ځکه اهل کتابو د ټولو په پرتله د الله د رسولﷺ شخصیت پوره او بشپړ پیژانده لکه چې الله تعالی فرمایي: (يَعرِفوُنَهُ كمَا يَعرِفوُنَ أبنَآءَ هُم) (بقره سورت ۱۴۶)

**ژباړه:** یهودو محمدﷺ داسې پیژانده، لکه: خپل اولادونه چې پیژني.

نو له تصدیق څخه مراد یقین او باوردی البته داسې باور چې د بنده زړه او باطن ورباندې آرامیږي.

– د اهل سنت او جماعت په مذهب که یو تن په کبیره گناه مرتکب شي او یا دا چې د ایمان په څنگ کې نیک عملونه ونه لري بیا هم مؤمن دی او ایمان ورڅخه نه سلب کیږي اما فاسق گڼل کیږي.

– ځینو صحابه وو اوتابعینو د اسلام په ارکانو عمل د ایمان جز گڼلی دی.

– خوارج دلویې گناه مرتکب ته کافر وایي.

– معتزله د ګناه مرتکب کافر نه ګني او نه مسلمان بلکې د داسې خلکو په هکله منځګړی دریځ لري. دا لومړنی بدعت دی چې په عقائدو کې پیدا شو. [1]

لکه څنګه چې په درسي کتاب کې په حدیث کې راغلي: ایمان څه د پاسه اویا څانګې لري چې تر ټولو غوره څانګــه یــې د لاإله إلاّالله ویل دي او ترټولو ټیټه څانګه یې له لارې څخه د ضررناکو شیانو لرې کول دي.

حضرت رسول اللهﷺ کله حیاء د ایمان جز ګڼلې ده او کله یې نکاح د ایمان جز ګڼلې ده او په یوبل ځای کې یــې مینــه او دوستي د ایمان جز ګڼلې ده، لکه چې په احادیثو کې راځي: (عَن أنس ٍ قالَ قالَ رَسُولُ الله ﷺ إذا تَزَوجَ العَبد فَقــد إســتَكمَل نِصفَ الدِين فَليَتَقِ الله فِى النِصفِ البَاقِى) {رواه البیهقی}

له حضرت انسؓ څخه روایت دی، چې رسول اللهﷺ فرمایلي: کله چې بنده نکاح وکړي، نو په باوري توګه نیم دیــن یــې بشپړ کړ، نو باید د نیم نور په هکله له الله تعالی څخه وویریږي.

اوپه بل حدیث کې راځي. (عَن أبِى هُريرَة قالَ قالَ رَسُولُ الله ﷺ لا تَدخَلُونَ الجَنّة حَتى تُؤمِنُوا وَلا تُؤمِنُوا حَتــى تَحَــابُوا أولا أدُلكُم عَلى شَئٍ إذا فَعلتُمُوهُ تَحَابَبتُم أفشُوالسَّلامَ بَينَكُم) {رواه مسلم}

ژباړه: له حضرت ابوهریرهؓ څخه روایت دی وایي: رسول اللهﷺ وفرمایل: جنت ته به داخل نشی، څو ایمان را نــه وړي او ایمان به نه راوړي څو یو له بل سره مینه ونه لری. آیا تاسو ته په یوه داسې شي دلالت ونه کوم چې که هغه ترسره کړی، نــو یو له بل سره به مو مینه پیدا شي.(هغه شی دا دی) چې په خپلو کې سلام اچول خور کړئ.

همدارنګه په بل حدیث کې راځي: (عَن اَبِى هُريرة قالَ قالَ رَسُولُ الله ﷺ وَالحَيا ءُ شُعبَةٌ مِن الاِيمَانِ) {متفق علیه }

ژباړه: له حضرت ابوهریرهؓ څخه روایت دی وایي: د الله رسول وفرمایل: اوحیاء دایمان غوره څانګه ده.

او همدارنګه امانت ساتنه له اسلام د ارزښتناکو خویونو څخه یو خوی دی، چې د ایمان جز ګڼل کیږي او د یوه سړي پــه امینولی دلالت کوي، څکه د الله رسول فرمایي: (عَن أنسٍ قالَ قَلَمّا خَطبَنا رَسُولُ الله ﷺ إلاّ قالَ لاَ إيمَانَ لِمَن لاَ أمَانَةَ لَــهُ وَلاَ دِينَ لِمَن لا عَهدَ لَهُ) {رواه البیهقی}

ژباړه: له انسؓ څخه روایت دی، چې کله به رسول اللهﷺ موږ ته وعظ کاوه فرمایل به یې: څوک چې دامانت رعایت نــه کوي بشپړ مؤمن ندی او همدارنګه څوک چې په خپله ژمنه وفا نه کوي د کامل دین لرونکی ندی.

– لکه څنګه چې ایمان بیلا بیلې څانګې لري، چې بنده باید له هغو ټولو چینو څخه د خپل زړه او ضمیر نیالګي خړوبه کــړي او خپله خوله یې د هغو له خوند څخه خوږه کړي البته د ایمان له چینې خړوبوالی او د هغو له مزې څخه خوږ والی د نیکــو اعمالو تر سره کول او په هغو کې سود اخلاص ښودل دي، چې په دې هکله هم حدیث راغلــی دی. (عَــن العَبَــاسِ بِــن عَبدالمُطلِب قَالَ قالَ رَسُولُ الله ﷺ ذَاقَ طَعمَ الاِيمَان مَن رَضِىَ بِالله رَباً وّ بَالاِسلامِ دِيناً وَّ بِمُحمّدٍ رَّسُولاً) {رواه المسلم }

**ژباړه:** له حضرت عباس بن عبدالمطلبؓ څخه روایت دی، چې رسول اللهﷺ وفرمایل: د ایمان له خوند څخه هغــه هغــه څوک ګټه اخستلی شي، چې د الله په ربوبیت، د اسلام د دین حقانیت او د محمدﷺ په رسالت خوشحاله او ډاډ من وي.

**دځینوکلمو معنا:**(اصحاب صفه: درسول اللهﷺ هغه یارانو ته ویل کیږي، چې ځانونه یې د علم دین لپاره وقف کــړي وو او اکثره وخت یې د نبوي مسجد په صفه تیرا وه.) (ذکاوت:پوهه) (متضمن: تضمین کوونکی) (غریزهٔ: د انسان فطري قوت)

[1] اشعة اللمعات – جلد اول ص ۴۰

**د تدریس تګلاره:** پوښتنې او ځوابونه، انفرادي او ګروپي، توضیحي او تشریحي.

**مرستندویه درسي توکي:** کتاب، تخته، تباشیر........

| وخت | فعالیتونه |
|---|---|
| ۵دقیقې سریزه | ښوونکی ټولګي ته له ننوتلو سره سم له سلام اچولو او د الله تعالی له حمد او ثناء او پر پیغمبرﷺ باندې له درود ویلو، د زده‌کوونکو له احوا ل پوښتنې، د ټولګي له تنظیم او د حاضرۍ له اخیستلو وروسته مخکینی لوست د کورنۍ دندې په کتلو سره چې په هغې کې د حدیث شریف حفظ هم شامل دی ارزوي. |
| | ښوونکی د نوي لوست په اړه د انګېزې پیدا کولو او نوي لوست ته د سرلیک پیدا کولو په موخه له څو زده‌کوونکو څخه پوښتنې کوي، لکه: ایمان څو څانګې لري؟ |
| ۲۵ دقیقې د لوست وړاندې کول | ښوونکی د پورتنۍ پوښتنې د سم ځواب له اورېدلو څخه وروسته د لوست سرلیک چې (د ایمان اړین څیزونه) دي، د زده‌کوونکي په لاس پر تخته باندې په ښکلي او ښایسته خط لیکي. |
| | ښوونکی له څو زده کوونکو څخه غواړي، چې هر یو یې په خپل ځای کې ودرېږي او ایمان په لغت او اصطلاح کې تعریف کړي. |
| | ښوونکی زده‌کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست په پټه خوله ولولي او پخپله پدې وخت کې دا کلمې اصحاب صفه، ذکاوت، تضمین کوونکی او فطرت پر تخته لیکي. |
| | ښوونکی هغه ستونزمنې کلمې چې د تختې پر مخ لیکل شوې دي پر زده‌کوونکو ژباړي، وروسته یوه زده‌کوونکي ته بلنه ورکوي چې د تختې مخې ته راشي او هغه کلمې له معنا سره ولولي، ښوونکی د زده‌کوونکو تیر وتنې سموي او له یوه زده‌کوونکي څخه غواړي چې کلمې له معنا سره ولولي او په عین وخت کې له زده‌کوونکو څخه غوښتنه کوي چې د لوست ستونزمنې کلمې په خپلو کتابچو کې ولیکي. |
| | ښوونکی یوه زده کوونکی ته لارښوونه کوي چې د لوست څنګیز سر لیکونه د تختې پر مخ ولیکي.<br>د ایمان خصلتونه،<br>- دکلمې طیبې فضیلت،<br>- دکلمې غوښتنې،<br>- ددلارو اوسرکونو څخه د زیان رسونکو شیانو لیرې کول،<br>- حیاء د ایمان برخه ده، |
| | ښوونکی له څنګیزو سرلیکونو څخه په ګټه اخیستلو سره لوست تشریح کوي او په ارزښتناکو کلمو باندې ډېر ټینګار کوي. |
| | ښوونکی د لوست له توضیح څخه وروسته زده‌کوونکو ته لارښوونه کوي چې د تختې پر مخ لیکلې کلمې په خپلو کتابچو کې ولیکي. |
| | ښوونکی زده‌کوونکي په څو ډلو وېشي او دنده ورکوي چې د طیبې کلمې د فضیلت په هکله او هغه څیزونه په اړه چې په لارو کې دخلکو د زیان سبب ګرځي یو له بل سره بحث او خبرې وکړي. |
| | ښوونکی د ډلو د کار په وخت کې ټولګی کنترول او نظم برابروي او د اړتیا په صورت کې د ډلو په بحث کې ګډون کوي. |
| | ښوونکی له هرې ډلې څخه غوښتنه کوي چې ځان ته یو مشر وټاکي او د بحث پایلې دې په یوه پاڼه کاغذ کې ولیکي او د دوی مشر دې هغه کلمې د ټولګیوالو په وړاندې د ټولګي په مخ کې ولولي. |

| | |
|---|---|
| | ښوونکی د بحث پایلې ارزوي، زده‌کوونکي خپلو غلطیو ته متوجه کوي او هڅوي يې. |
| ۱۰دقيقې | **ارزونه:** |
| | ښوونکی د خپل ځان د ډاډ لپاره زده‌کوونکي د درسي کتاب په پوښتنو باندې ارزوي. |
| | **لنډيز:** |
| | دا لوست په لاندې نکتو کې لنډيز کيږي. |
| | – ۱ حضرت ابو هريره **۵۳۷۴** حديث له رسول اللهﷺ نه روايت کړی دی. |
| | – ۲ ايمان له اويا څخه زياتې څانگې لري چې لوړه يې د طيبې کلمې ويل دي او ټيټه يې له لارو څخه د زيان رسوونکو شيانو ليرې کول دي. |
| | –۳ د طيبې کلمې غوښتنې دادي:په الله ايمان، په ملايکو، په رسالت او دقيامت په ورځ باندې همدارنگـــه د ټولو احکاموپيروي کول او د رسول اللهﷺ د سنتو پيروي د کلمې غوښتنه ده. |
| | – حياء برسره پردې چې يو ه انساني غريزه ده په عين الحال کې د ايمان برخه ده. |
| ۵دقيقې | **کورنۍ دنده:** |
| | ښوونکی زده کوونکو ته دنده ورکوي چې دحياء په هکله يوه شپږ کرښيزه مقاله وليکي. |

نولسم لوست:

## سرلیک: تعصب (قوم پرستي)

**مخ:** ٦١

**وخت:** دوه درسي ساعتونه

**موخې:** زده کوونکي باید:

-١ د حدیث شریف متن په سم ډول ولوستلای شي.

٢- د حدیث شریف نص حفظ کړلی شي.

٣- د حدیث شریف مطلب اوغوښتنه وپیژندلی شي .

٤- د حدیث شریف پر معنا پوه شي.

**اضافي معلومات :**

– تعصب مصدر دی د حمایت کولو په معنا او په اصطلاح کې له قوم، نژاد، کورنی، خپلوانو، سمت، ژبې، سیمې او نسب څخه پرظلم او ناحقه ملا تړ کول دي.

– تعصب له عصب نه اخیستل شوی او عصب د لغت له مخې پلې ته ویل کیږي، هغه پله چې د انسان په بدن کې د سپین رنګه، بې له وینې وجود لري، چې له مغز سره مستقیم ارتباط نیسي.

– ولې هغه چاته چې له خپل قوم څخه پر ناحقه حمایت او دفاع کوي متعصب ویل کیږي؟

ځکه متعصب سړی د تعصب او ظلم کولو په وخت کې خپل حواس نشي کنټرول کولای او د غاړې پلې یې پړسیږي. ([1])

– له قوم، دوستانو او خپلوانو سره، چې په ظلم او ناروا کې نه وي مینه، دوستي او مرسته کول تعصب نه بلل کیږي، لکه څنګه چې رسول اللهﷺ د پوښتنې په ځواب کې فرمایي:

(عَن عِبادة بن كثِيرالشَامِي مِن اَهل فلسطِين عَن إمرأةٍ مِنهُم يُقالَ لَهَا فسيلةُ أنَّهَا قالت سَمِعتُ أبى يَقوُل سألتُ رَسُولُ اللهﷺ فَقلتُ يَا رَسُولَ اللهﷺ أمِن العَصَبِيّة أن يُّحِبَ الرّجُل قومُهُ قالَ لا وَلكِن مِن العَصَبِيّة أن يَّنصُرالرَّجُل قومَهُ عَلى الظُلم){رواه احمد وابن ماجه}

ژباړه: له حضرت عباده بن کثیر الشامي «رح» څخه چې د فلسطین له اهل څخه و، روایت دی: نوموړې د یوې فلسطینی ښځې چې فسیلهٔ به یې ورته ویل روایت کړی چې هغې ویل: له پلار څخه مې اوریدلي دي هغه ویل چې له رسول الله څخه مې پوښتنه وکړه: یا رسول الله! آیا دا په کې راځي څوک چې له خپل قوم سره مینه وکړي؟ ویې ویل نه بلکې په عصبیت کې هغه راځي څوک چې د قوم سره په ظلم مرسته وکړي.

– متأ سفانه زموږ په هیواد کې نن ورځ عصبیت له سرنه تر پښو پورې په ظلم او ناروا سره دی. دغه یوه ډېره بده پدیده ده، چې دهیلو، سولې، پرمختګ، دوستی او وروروګلوي ټولې دروازې یې زموږ افغانانو پر مخ تړلې دي.

–څوک چې د محمدﷺ د امتي دعوه لري، د اسلام ناړې وهي، نو باید په پوره توګه په اسلام کې شامل شي او هیڅکله د جاهلیت او قومي دودونه د اسلام پر احکامو جګ ونه ګڼي. پدې هکله الله فرمایي: (يَاَيُّهَا الّذِينَ آمَنوُا ادخُلوُا فِى السّلِم كَآفّة) بقره ٢٠٨ ژباړه: ای مؤمنانو! تاسې په هر اړخیز ډول په اسلام کې ننوځئ. یعنې د اسلام د ټولو احکامو پیروي وکړئ.

– مسلمان باید دا درک کړي، چې برتري په قوم، نژاد، سیمه، ژبه، رنګ او نسب کې نده بلکې د الله په وړاندې معیار تقوا او پرهیزګاري ده. لکه چې الله فرمایي: (يَاَيُّهَا النّاس إنّا خَلقنَكُم مِن ذَكرٍ وَّ اُنثى وَجَعلنَكمُ شعُوباً وّ قَبَائِل لِتعَارَفوُا إنّ أكـرَمَكُم عِندَاللهِ أتقكمُ إنّ اللهَ عَليمٌ خَبيرٌ) حجرات ١٣.

[1] اشعة اللمعات – جلد ٤ – ص ٩٨

ژباړه: ای خلکو! موږ تاسې له یوه نارینه او یوې ښځې نه پیدا کړئ اوبیا مو تاسې قومونه او قبیلې وګرځولی چې چې تاسې یوتر بله سره وپیژنئ په حقیقت کې د الله په نزد له تاسې نه ترټولو زیات عزتمند هغه څوک دی چې په تاسې کې تر ټولو زیات پرهیزګار وي، په باوري ډول الله په هرڅه پوهیدونکی او باخبردی.

– رسول اللهﷺ هم د معیار د برتری په خپلو ارزښتناکو لارښونو کې فرمایلی، چې څو یې نظر په بحث سره ذکر کوو. (عَن اَبی هُریرةَ قالَ سُئل رَسُولَ اللهﷺأیّ النّاسِ أکرَم قالَ أکرَمُهُم عِندَاللهِ أتقهُم قالوُا لیسَ عَن هذا نسلُکَ قالَ فاکرَمَ النّاس یُوسُف نبّیِ الله اِبن نبّیِ الله اِبن نبّی الله اِبن خَلِیلُ الله قالوُا لیسَ عَن هذا نَسالُک قالَ فعَن مَعادِن العَربِ تَسالوُنی قالوُا نَعَم قالَ فَخیارُکُم فِی الجَاهِلیّةِ خیارُکُم فِی الاِسلام إذا فَقَهُوا) {متفق علیه} ژباړه: له حضرت ابو هریرهؓ څخه روایت دی له رسول اللهﷺ څخه پوښتنه وشوه، چې کوم شخص له خلکو څخه معزز او مکرم دی؟ هغهﷺ وفرمایل: مکرم او معزز خلک د الله په وړاندې هغه څوک دي چې پرهیزګاره وي. اصحابو وفرمایل مراد زموږ دا سوال نه و. رسول اللهﷺ وفرمایل: که چیرې مو مراد له دې څخه د نسب کرم وي، نو حضرت یوسفؑ مکرمترین دخلکو و، ځکه خپله د الله پیغمبرو او پلار یې یعقوبؑ هم د الله پیغمبرو د هغه پلار یې اسحاقؑ هم د الله پیغمبر و، او نیکه یې ابراهیمؑ هم د الله پیغمبر و، اصحابو وفرمایل: دا پوښتنه هم نکوو. رسول اللهﷺ وفرمایل: تاسو د عربو دقبائلو او خپلو پلرونو پوښتنه کوئ دوی وویل: هو. ویې فرمایل: که چیرې د دې پوښتنه کوئ، نو پوه شئ، چې بهترین د تاسو دجاهلیت بهترین په اسلام کې دی کله چې دوی په احکامو او شرعه د دین پوه شي.

(عَن عَیاض بن الُمجَاشعِی أنَّ رَسُولَ اللهﷺ قالَ إنَّ اللهَ أوحَی إلیَّ أن توَاضَعوُا حَتّی لا یُفتَخِر أحدٌ عَلی أحدٍ وَلا یَبَغِی أحدٌ عَلی أحدٍ) {رواه مسلم}

له حضرت عیاض بن المجاشعيؓ څخه روایت دی په تحقیق سره رسول اللهﷺ وفرمایل: یقینا الله ماته وحی وکړه چې تواضع اوخاکسري وکړئ او هیڅ یو د پر بل فخر او تکبر ونه کړئ همدا رنګه یو پر بل ظلم او تیری ونه کړئ.

(عَن عَبدالرّحمَن اِبن اَبی عُقبَة عَن اَبی عُقبة وَکانَ مُولیً مِن اَهل فَارس قالَ شَهدتُ مَع رَسُولُ اللهﷺ أُحُداً فضَربتُ رَجُلاً مِن الُمشرکِین فقلتُ خُذهَا مِنّی وَأنا الغُلامُ الفَارس فَالتفَت إلیَّ رَسُولُ اللهﷺ فقالَ هلاَّ قلتَ خُذهَا مِنّی وَأنا الغُلامُ الانصَارِی){رواه ابوداؤد}

له حضرت عبدالرحمن ابن ابي عقبه څخه روایت دی: په داسې حال کې چې هغه له پلار ابو عقبه څخه روایت کوي او ابو عقبه له فارس څخه یو ځوان و ابي عقبه وویل: زه د رسول اللهﷺ سره د احد په غزوه کې حاضر وم، نو یو سړی مې له مشرکانو څخه وواهه(په غشي یا نیزه اویا توره) او ومې ویل ورته ونیسه دا د مالخوا (دا هغه کلمه ده چې جنګي قهرمانان یې دجنګ په وخت کې وایي) زه د اهل فارس یو ځوان یم پدې وخت کې رسول اللهﷺ ماته کتل او ویې ویل ولې د داسې ورته ونه ویل چې واخله دا زما لخوا زه یو انصار یم (دهلوي صاحب وایي د صحابي لپاره د رسول اللهﷺ له دې فرمودې مراد دا دی چې په دغه وخت کې به یې نسبت قوم ته نه کاوه بلکې داسې به یې ویلي وو چې زه یو انصاري یم ځکه هغوی د الله د دین ناصرین دي)

– عصب هغه سپنې پلې ته ویل کیږي، چې په ټول بدن کې تیت دي اوبې له وینې وي.

– اقلیم په لغت کې سیمې او هیواد په معنا دی. د زمین پوهنې علماوو ټوله وچه د ځمکې په اوو برخو ویشلې ده او هره برخه یې په اقلیم نومولې ده.

**دکلمو معنا:** (انساب: د نسب جمع ده)(شګرف: عجیب، نیکو، ښکلی)(عصب: پله)(حسب: جاه اوجلال، شأن اوشوکت) (اقلیم – مملکت، هیواد)

**د تدریس تګلاره:** پوښتنې او ځوابونه، انفرادي او ګروپي، توضیحي او تشریحي.

**مرستندویه درسي توکي:** کتاب، تخته، تباشیر...

| وخت | فعالیتونه |
| --- | --- |
| ۵دقیقې سریزه | ښوونکی ټولګي ته له ننوتلو سره سم له سلام اچولو، او د الله تعالی له حمد او ثناء او پر پیغمبرﷺ باندې لـــه درود ویلو، د زده‌کوونکو له احوا ل پوښتنې، د ټولګي له تنظیم او د حاضرۍ له اخیستلو وروسته مخکینـــی لوست د کورنۍ دندې په کتلو سره چې په هغې کې د حدیث شریف حفظ هم شامل دی، ارزوي. |
| ۲۵ دقیقې د لوســـت ورکول | ښوونکی د نوي لوست په اړه د انګېزې پیدا کولو او نوي لوست ته د سرلیک پیدا کولو په موخه لــه ځـــو زده‌کوونکو څخه پوښتنې کوي، لکه: ۱. ایمان څو څانګې لري؟ ۲. دایمان غوښتنې څه دي؟<br>ښوونکی د پورتنۍ پوښتنې د سم ځواب له اورېدلو څخه وروسته د لوست سرلیک چې (قـــوم پرســـتي) ده د زده‌کوونکي په لاس پر تخته باندې په ښکلي او ښایسته خط لیکي.<br>ښوونکی د ځوابونو له اوریدلو څخه وروسته له زده کوونکو څخه غواړي چې څه شی د یو ملت او ټـــولنې د بد بختۍ او وروسته والي سبب کېږي یو له د ځان سره غور او فکر کوي.<br>ښوونکی لوست د بېلګې په څېر لولي، په دویم ځل لوستنه کې له زده‌کوونکو څخه غواړي چې له ده څخـــه وروســـته یـــې تکرار کړي او په خپله باندې د دوی تکرار ته غوږ نیسي، او د تیر وتنې په وخت کې د دوی لوستنه تصحیح کوي.<br>ښوونکی هغه ستونزمنې کلمې چې د تختې پر مخ لیکل شوې دي پر زده‌کوونکـــو ژبـــاړي، وروســـته یـــوه زده‌کوونکي ته بلنه ورکوي چې د تختې مخې ته راشي او هغه کلمې له معنـــا ســـره ولـــولي، ښـــوونکی د زده‌کوونکو تیر وتنې سموي، او له یوه زده‌کوونکي څخه غواړي چې کلمې له معنا سره ولولي او پـــه عـــین وخت کې له زده‌کوونکو څخه غوښتنه کوي چې د لوست ستونزمنې کلمې په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>ښوونکی یوه زده کوونکی ته لارښوونه کوي چې د لوست څنګیز سر لیکونه د تختې پر مخ ولیکي.<br>– عصبیت دجاهلیت شعار دی. – په اسلام کې عصبیت ته بلنه کول حرام دي.<br>ښوونکی له څنګیزو سر لیکونو څخه په ګټه اخیستلو سره لوست تشریح کوي او په ارزښتناکو کلمو باندې ډېر ټینګار کوي.<br>ښوونکی د لوست له توضیح څخه وروسته زده‌کوونکو ته لارښوونه کوي چې د تختې پر مخ لیکلې کلمې په خپلو کتابچو کې ولیکي. |
| ۱۰دقیقې | ښوونکی زده‌کوونکي په څو ډلو وېشي او دنده ورکوي چې د عصبیت او قوم پرستۍ په اړه یو له بل سره بحث او خبرې وکړي.<br>ښوونکی د ډلو د کار په وخت کې ټولګی کنترول او نظم برابروي او د اړتیا په صورت کې د ګروپونـــو پـــه بحـــث کـــې ګډون کوي.ښوونکی له هر ګروپ څخه غوښتنه کوي چې ځان ته یو مشر وټاکي او د بحث پایلې دې په یـــوه پاڼه کاغذ کې ولیکي او د دوی مشر دې هغه کلمې د ټولګیوالو په وړاندې د ټولګي په مخ کې ولولي.<br>ښوونکی د بحث پایلې ارزوي زده‌کوونکي خپلو تیر وتنو ته متوجه کوي او هڅوي یې.<br>**ارزونه:** ښوونکی د خپل ځان د ډاډ لپاره زده‌کوونکي د درسي کتاب په پوښتنو باندې ارزوي. |
| ۵دقیقې | **لنډیز:** دا لوست په لاندې نکتو کې لنډیز کېږي.<br>۱– د قوم، خپلوانو، نژاد، نسب، سمت او ژبې په برخه کې په ناحقه حمایت کولو ته عصبیت وایي.<br>۲– د الله په وړاندې معیار او لوړوالی تقوا اوپرهیزګاري ده.<br>۳– عصبیت ته بلنه کول که په هر نوم وي حرامه ده.<br>۴– څوک چې د عصبیت په خاطر جنګ کوي او یا نور تشویقوي درسول اللهﷺ د وینا له مخې له اسلامي امت څخه نه حسابیږي.<br>**کورنۍ دنده:** ښوونکی زده کوونکو ته دنده ورکوي چې په اسلام کې دمعیار او لوړوالي په هکله یوه اوه کرښیزه مقاله ولیکي. |

**شلم لوست:**

## **سرلیک: د مؤمن شان (حالت)**

**مخ: ٦٥**

**وخت:** دوه درسي ساعتونه

**موخې:** زده کوونکي باید:

١- د حدیث شریف متن په سم ډول ولوستلای شي.

٢- د مسلمان مقام درک کړای شي.

٣- د حدیث شریف د کلمو پر معنا سم وپوهېږي.

٤- د حدیث د محتوا په هکله خبرې او وینا وکړلای شي.

**اضافي معلومات:**

چاچې ایمان راوړی ټول ژوند یې په اسلامي اساساتو برابر کړی، د الله په وړاندې لوړ مقام او منزلت لري لکه څنګــه، چــې قرانکریم پدې باندې شاهد دی او په ډېرو آیتونو کې یې د دنیا او اخرت د نیکمرغۍ زیری ورکړی دی.

- د درسي کتاب له محتوا څخه داسې معلومېږي، چې په مجموع کې د مؤمن د ژوند ټول اړخونه په کامیابی، نیکمرغــی، ګټې او خیر کې دي په دې شرط، چې مؤمن بنده شکر کوونکی او صبر کوونکی وي.یعنې د اسانی او نعمت په وخت کــې شکرکوونکی وي، د مصیبت او تکلیف په وخت کې د صبر او حوصلې څخه کار واخلي.

- د بنده څخه له هغو نیکمرغیو او کامیابیو چې سترګې ورنه نشي پټېدلای یوه هغه داده، چې الله د خپلې دوســتی اعــلان کړی دی. د دوستی دغه تړون د آل عمران په ٦٨ آیت کې ثابت شوی دی. (إنّ أولی النّاسِ بِإبرَاهِیمَ للذِینَ اتّبعُــوهُ وَهَــذا النّبيُ وَالذِینَ آمَنوُا وَاللهُ وَلِيُ الْمُؤمِنِینَ)

ژباړه: څوک چې تر دې ټولو زیات حقدار دي چې ابراهیم عليه السلام ته منسوب شي هغه خلک دي چې د هغه پیروي یې وکــړه او اوس دا پیغمبر او دده منونکي د دې منسوبېدو زیات حقدار دي. الله یوازې د هماغه کسانو ملاتړ او مرستندوی دی چــې ایمان یې راوړی دی.

د پروردګار نعمتونه بې شماره دي لکه چې الله فرمایي: (وَإِن تَعُدُّواْ نِعْمَةَ اللّهِ لاَ تُحْصُوهَا إِنَّ اللّهَ لَغَفُورٌ رَّحِــيمٌ)النحــل ﴿١٨﴾

ژباړه: که تاسې د الله دنعمتونو شمیرل وغواړئ، نونه یې شئ شمیرلی، حقیقت دا دی چې هغه ډېر بښونکی او مهربان دی.

نو د الله نعمتونه په یوه یا څو شیانو نه خلاصه کیږي، بلکې هر څه چې په ماحول، کائناتو او خپلو نفسونو کې پــه ســترګو ګورو دا ټول او ټول د پروردګار نعمتونه دي، چې د موږ لپاره یې محیا کړي او دا ټول د آسانۍ په خاطر د ژوند زمــوږ پــه خدمت کې دي. له دې امله لازمه ده چې بنده د دې ټولو له توان سره سم شکر او کړي.

- د الهي نعمتونو په مقابل کې شکر کوونکی و اوسي. چې دا یوازې په پیروی، بندګی، امر منني، سجدې او بنده ګي اداء کیږي.

- باید بنده د ژوند په هر حالت کې راضي وي او د الله د رضا لاسته راوړلو سره د دنیا جاه او جلال شان او شــوکت تــه ترجیح ورکړي. په دې صورت کې الله دده په ځآن او مال کې په برکت اچوي او دی اجر لرونکی ګرځوي.

او که بنده بر عکس نافرماني او د نعمت کفران وکړي علاوه له دې څخه چې هغه نعمت ورڅخه بیرته اخلي، بلکې هغه تعذیبوي لکه څنګه چې دا نکته په قرآنکریم کې واضحه شوي ده. (وَإِذْ تَأَذَّنَ رَبُّكُمْ لَئِن شَكَرْتُمْ لأَزِيدَنَّكُمْ وَلَئِن كَفَرْتُمْ إِنَّ عَذَابِي لَشَدِيدٌ) [1]

ژباړه: او په یاد ولرئ ستاسې رب خبردار کړي یاست، چې که تاسې شکر وباسې، نو پر تاسې به لا زیاته پېزوینه وکړم او که د نعمت ناشکري وکړئ، نو زما سزا ډېره سخته ده.

– د ایمان او اعمالو بهتری کومې چې الله دغه امت ته ورپه برخه کړې په نورو امتونو کې وجود نلري، څنګه چې قرآنکریم په نورو ټولو اسماني کتابونو فضیلت ورکړی یا رسول اللهﷺ ته یې په نورو انبیاء علیهم السلام باندې فضیلت او برتري ورکړې همدارنګه یې دغه (اخر زمان امت) د نورو امتونو په پرتله فضیلت او بر تري ورکړې، نو د دې امله مؤمن په هر حالت کې د خپل خیر او فلاح ته متوجه کیږي.

**دځینوکلمو معنا:**(جلیل القدر: لوړ مقام اوعالي) (پراخ: وسیع، آزاد) (ردیف: قطار) (تعلق: تړلی) (فخر: ویاړ، افتخار)

**د تدریس تګلاره:** پوښتني او ځوابونه، انفرادي او ګروپي، توضیحي او تشریحي

**مرستندویه درسي توکي:** کتاب، تخته، تباشیر...

| وخت | فعالیتونه |
|---|---|
| ۵دقیقې سریزه | ښوونکی وروسته له مقدماتي موضوع څخه د تیر شوي لوست څو پوښتنې کوي، چې پر هغه تیر شوي لوست هم ارزوي دېلګې په توګه:<br>۱– څوک کولای شي متعصب شخص معرفي کړي؟<br>۲– څوک دا مبارک حدیث تکمیلولای شي؟<br>(لیسَ مِنّا مَن .... وَلیسَ مِنّا مَن .... وَلیسَ مِنّا مَن ...عَصَبِيَّةٍ |
| ۲۵دقیقې د لوست وړاندې کول | ښوونکی دځوابونو له اوریدلو څخه وروسته په اسلام کې د مؤمن په موقف او فضیلتونو لنډې خبرې کوي.<br>ښوونکی د پورتنی پوښتنې د صحیح ځواب له اورېدلو څخه وروسته د لوست سرلیک چې (د مؤمن شان) دي، د زده‌کوونکي په لاس پر تخته باندې په ښکلي او ښایسته خط لیکي.<br>ښوونکی زده‌کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست په پټه خوله ولولي او پخپله پدې وخت کې دا کلمې جلیل القدر، پراخ، ردیف او فخر پر تخته لیکي.<br>ښوونکی هغه ستونزمني کلمې چې د تختې پر مخ لیکل شوې دي پر زده‌کوونکو ژباړي، وروسته یوه زده‌کوونکي ته بلنه ورکوي چې د تختې مخې ته راشي او هغه کلمې له معنا سره ولولي، ښوونکی د زده‌کوونکو تیروتنې سموي او له یوه زده‌کوونکي څخه غواړي چې کلمې له معنا سره ولولي او په عین وخت کې له زده‌کوونکو څخه غوښتنه کوي چې د لوست ستونزمنې کلمې په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>ښوونکی یو زده کوونکی ته لارښوونه کوي چې د لوست څنګیز سرلیکونه د تختې پر مخ ولیکي.<br>انسان مورد ابتلا قرار می ګیرد،<br>– د خوشحالی او نعمت حالت،<br>– دنعمتونو شکر ایستل،<br>– داندامونو په مرسته شکر کول. |

[1] سوره ابراهیم – آیت ۷

| | |
|---|---|
| – شکر ایستل د قیامت په ورځ باندې سبب.<br>ښوونکی له څنګیزو سرلیکونو څخه په ګټه اخیستلو سره لوست تشریح کوي او په ارزښتناکو کلمو بانــدې ډېر ټینګار کوي.<br>ښوونکی د لوست له توضیح څخه وروسته زده‌کوونکو ته لارښوونه کوي چې د تختې پر مخ لیکلې کلمې په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>ښوونکی زده‌کوونکي په څو ډلو وېشي او دنده ورکوي چې د شکرفضیلتونو او د ناشکرۍ د زیانونو پــه اړه یو له بل سره بحث او خبرې وکړي.<br>ښوونکی د ډلو د کار په وخت کې د ټولګی کنترول او نظم برابروي او د اړتیا په صورت کې د ډلو په بحث کې ګډون کوي.<br>ښوونکی له هرې ډلې څخه غوښتنه کوي چې ځان ته یو مشر وټاکي او د بحث پایلې په یوه پاڼه کاغذ کــې ولیکي او د دوی مشر دې هغه کلمې د ټولګیوالو په وړاندې د ټولګي په مخ کې ولولي. | |
| ښوونکی د بحث پایلې ارزوي زده‌کوونکي خپلو غلطیو ته متوجه کوي او هڅوي یې.<br>**ارزونه:**<br>ښوونکی د خپل ځان د ډاډ لپاره زده‌کوونکي د درسي کتاب په پوښتنو باندې ارزوي.<br>**لنډیز:**<br>دا لوست په لاندې ټکو کې لنډیز کیږي.<br>۱– حضرت صهیب بن مالک له مور اوپلارڅخه عربي و، خو د رومیانو په مینځ کې لوی شوی و او هغه پــه ټولو غزواتو کې د رسول اللهﷺ سره شرکت کړی و. نوموړی په ۳۸ هجری کال کې وفات شوی دی.<br>۲– د انسان ژوند ټول په آزموینو کې دی، چې لاملونه یې نعمتونه، آرامی کله هم غمونه او تکلیفونه وي.<br>– که مسلمان واقعاً صابر اوشاکر وي، نو د دنیا او اخرت کامیابي یې په برخه ده. شکر یوازې په ژبــه نــه بلکې په طاعتونو او عباتونه اداء کیږي. | ۱۰دقیقې |
| – په مال، ثروت، صحت، عمر ځواني داټول په حقیقت کې د الله نعمتونه دي باید قدر یې وشي.<br>**کورنۍ دنده:**<br>ښوونکی زده کوونکو ته دنده ورکوي چې دمبارک حدیث د ګټو په هکله یوه شپږ کرښیزه مقاله ولیکي. | ۵دقیقې |

**یویشتم لوست:**

## سرلیک: پر تکالیفو صبر

**مخ:** ۷۱

**وخت:** دوه درسي ساعتونه

**موخې:** زده کوونکي باید:

۱- دلوست نصوص سم ولوستلای شي.

۲- د موضوع ارزښت درک کړای شي.

۳- دصبر او حوصلې په ارزښت او اجر باندې پوه شي.

۴- په راتلونکي کې صابر او تحمل لرونکي شخصیتونه شي.

**اضافي معلومات :**

خوښو او ښو اخلاقو څخه چې د انسان مقام او منزلت لوړوي او د الله رضا حا صلوي صبر او زغم دی. صبر او زغم پر نفس باندې د ستونزو او ناخوالو په وړاندې د ناوړو شیانو زغمل دي، آن تر دې چې صبر او زغم کله داسې کچې ته رسیږي، چې مؤمن انسان په خپله خوښه او رضا د ستونزو سره مخامخ کیږي.

– مؤمن بنده له یوې خوا نه خپل نفس د الله په عبادت او پیروی مجبوروي او دنفس ناخوښی ته پاملرنه نکوي او له بل لوري هغه د الله له ګناه او نافرمانۍ څخه بندوي او هغه ته سرغړونې او په فاني لذتونو پسې تللو ته اجازه نه ورکوي.

همدارنګه په سختو او ستونزمنو شرایطو کې خپل نفس زغم او حوصلې ته هڅوي او چیغو فریادونو ته اجازه نه ورکوي.

– پوهانو ویلي دي: د ستونزو په وړاندې بې حوصلګي په خپله بده ستونزه او غم دی او د الله په تقدیر ناخوښ اوسیدل د نا پوهی نښانه ده او د حکیم الله په اراده اعتراض کول دي.

– مؤمن انسان په سختو شرایطو او ناخوالو کې د شیانو په پیل او انجام کې فکر کوي او الله یادوي او دالله عبادت کوي، دهغه په نعتونو شکر باسي، دهغه له عذاب څخه ځان ژغوري، له ځان سره وایي چې دالله تقدیر اوکړنلاره د حکمت او علم په بنسټ منځته راځي او هیڅوک نشي کولای چې دهغه مخه ونیسي. چیغې او فریا دونه دردونه دوا کولای نشي او مشکل اسانولای نه شي بلکې باید وپوهیږي، چې بې صبري دده دګناه بار لا درنوي. خو د صبر اوزغم په وسیله غمونه دده له اوږې څخه سپکیږي او اخروي اجر هم لاسته راوړي.

– صبر او زغم هغه اخلاق دي، چې په انسان کې په هلو ځلو، پالنه او روزنه منځته راځي او د کمال پوړۍ ته رسیږي، نولازمه ده چې مؤمن په خپله اړتیا او د الله په بدایوالي کې فکر وکړي او له هغه څخه وغواړي څو صبر او زغم دده په ضمیر کې پیدا کړي او دقرآني آیتونو په وسیله د هغو ارزښت وپیژني، لکه چې الله فرمایي:

(يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ اصْبِرُواْ وَصَابِرُواْ وَرَابِطُواْ وَاتَّقُواْ اللّهَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ) آل عمران ۲۰۰.

ژباړه: ای کسانو چې ایمان مو راوړی دی، صبرکوئ او استقامت وکړئ. د احکامو ساتنه کوئ او له الله نه وویریږئ شاید چې کامیاب شئ.

همدارنګه الله فرمایي: (الَّذِينَ إِذَا أَصَابَتْهُم مُّصِيبَةٌ قَالُواْ إِنَّا لِلّهِ وَإِنَّا إِلَيْهِ رَاجِعونَ) أُولَئِكَ عَلَيْهِمْ صَلَوَاتٌ مِّن رَّبِّهِمْ وَرَحْمَةٌ وَأُولَئِكَ هُمُ الْمُهْتَدُونَ) ([1])

ژباړه: او د مصیبت راتلو په وخت کې وایي چې موږ د الله یو او دهماغه الله لوري ته زموږ ورګرځېدل دي. پر هغو به د هغو درب زیاتې پېرزوینې او رحمت وي او همدغه شان خلک پر سمه لار روان دي.

[1] سوره بقره – آیات ۱۵۷-۱۵۸

همدارنګه الله فرمايي: (قُلْ يَا عِبَادِ الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا رَبَّكُمْ لِلَّذِينَ أَحْسَنُوا فِي هَذِهِ الدُّنْيَا حَسَنَةٌ وَأَرْضُ اللَّهِ وَاسِعَةٌ إِنَّمَا يُوَفَّى الصَّابِرُونَ أَجْرَهُم بِغَيْرِ حِسَابٍ) [1]

**ژباړه:** اى پيغمبره ووايه چې اى د الله بندګانو چې ايمان موراوړيدى له خپل رب نه ووېرېږئ کومو کسانو چې په دنيا کې نيک چلند غوره کړى دى دهغو لپاره ښېګنه ده او د الله ځمکه پراخه ده، صبر کوونکو ته به خپل اجر بې حسابه ورکړشي..

– هو کې صبر او زغم د نيکو، ربښتينو او پرهيزګارو خلکو خوى او عادت دى.

او حقيقت دا دى که چيرته مؤمن د الهي دين په خدمت او دده د رضا په حاصلولوکې رنځ او کړاو ومني، د صبر او زغم لاره خپله کړي، بديو ته په نيکيو ځواب ورکړي او دالله د رضا لپاره له چا څخه د غچ اخيستلو په فکر کې و نه اوسيږي او پدې هکله بايد په پيغمبرانو او نيکانو پسې اقتدا وکړي. [2]

– عبدالله بن مسعودﷺ وايي: د الله له رسول څخه مې واوريدل چې فرمايل يې: دخلکو لخوا يو پيغمبرته رنځ او کړاو ورسيد او دهغه مبارک مخ يې ټيي کړ، خو کله چې هغو دخپل مخ وينې پاکولې، الله ته يې ويل: (الّٰهم اغفرلِقَومِى فَاِنّهُم لايَعلمُون): اې زما پروردګاره زما قوم ته ببښنه وکړه، ځکه دوى نه پوهيږي د ناپوهى له وجهې دا کار کوي. او همدارنګه رسول اللهﷺ د صبر او زغم په هکله داسې لاربښوونې کړي دي: (عَن إبِى هُريرَة قالَ قالَ رَسُولُ اللهﷺ المُؤمِن القوىُّ خَيرٌ وَأحبُّ إلى الله مِن المُؤمِن الضَعِيف وَفِى كُلٍّ خَيرٌ أحرِص عَلى مَا يَنفَعَکَ وَإستَعِين بالله وَلا تُعجز وَإن أصَابَکَ شَىٌ فَلا تَقُل لَوإنِّى فَعَلتُ كَانَ كَذا وَكَذا وَلِكن قُل قَدّرَالله وَمَا شَآءَ فَعل فإنَّ لوتَفتَحَ عَمل الشّيطَان){رواه مسلم}

ژباړه: له حضرت ابوهريرهﷺ څخه روايت دى وايي: رسول اللهﷺ وفرمايل: پياوړى مؤمن (په ايمان، عقيده، توکل، صبر، جهاد او پيروى کې) دالله په وړاندې دضعيف او بې وزلي مؤمن څخه غوره دى، نو په هرهغه څه کې چې تاته ګټه رسوي حريص اوسيږه او له الله نه مرسته غواړه او له غوښتنې عاجز مه اوسيږه او که تاته څه کړاو ورسيد، نو داسې مه وايه چې که مې داسې کړي واى داسې به شوي واى، بلکې وايه هر څه د الله په تقدير کې دي او هغه کوي چې خوښه يې وي، او له بلې خوا د شيطان لپاره لاره خلاصيږي او د ويونکي په زړه کې وسوسه اچوي د شيطان له وسوسو څخه دى.

(عَن اَبى هُريرةَ أنّ رَسُولَ الله ﷺ قالَ يَقولُ اللهُ تعَالى مَا لِعَبدِى المُؤمِن عِندِى جَزاءُ إذا قَبَضتُ صَفِيَّهُ مِن أهل الدُنيَا ثُمّ أحسَبَهُ إلاّ الجَنّة) {رواه البخارى}

ژباړه: له ابوهريرهﷺ نه روايت دى وايي: رسول اللهﷺ وفرمايل: الله تعالى فرمايي: زما دمؤمن بنده لپاره چې کله يو دوست ورځنې واخلم او هغه صبر وکړي او دخپل زغم بدلې ته هيله من وي له جنت څخه پرته بله بدله نشته.

(عَن اَبى هُريرة قالَ قالَ رَسُولُ اللهﷺ مَايَزَال البَلاءُ بِالمُؤمِنِ وَالمُؤمِنَةَ فِى نَفسهِ وَوَلَدِهِ وَمَالِهِ حَتّى يَلقَى الله تَعالى وَمَا عَليهِ خَطِيئةِ) {رواه الترمذى}

ژباړه: له حضرت ابوهريرهﷺ څخه روايت دى، چې رسول اللهﷺ وفرمايل: پرمؤمن سړي او ښځه باندې د الله له لوري هميشه ځاني، مالي او اولادونوکې آزموينې راځي(خوکه صبروکړي) دالله سره به داسې مخامخ شي چې پرده به هيڅ د ګناه اثر پاتې نه وي.

عَن أبِى مُوسى الاَشعَرى قالَ قالَ رَسُولُ اللهﷺ إذا مَاتَ وَلدِ العَبد قالَ اللهُ تَعَالى لِلمَلائِكة قَبَضتُم وَلدَ عَبدِى فَيَقُولوَن نَعَم فَيَقُولُ قَبَضتُم ثَمرَةَ فُوادِهِ فَيقُولُونَ نعَم فَيَقول مَا ذا قالَ عَبدِى فَيقُولُونَ حَمدَکَ وَإستَرجَع فَيقُولُ إبنُوا لِعَبدِى بَيتاً فِى الجَنّة وَسَمُّوهُ بَيتُ الحَمد {رواه احمد والترمذى}

ژباړه: له ابوموسى اشعريﷺ نه روايت دى وايي رسول اللهﷺ وفرمايل: کله چې ديو بنده اولاد مړشي، نو الله د مرګ پرښتو ته وايي: زما د بنده د اولاد روح دې قبض کړ؟ هغه وايي: بلې! نو الله فرمايي: د هغه د زړه ميوه دې واخيسته؟ هغه وايي:

---

[1] سوره الزمر – آيت ١٠

[2] منهاج المسلم– ص ١٨٢

بلې! الله فرمايي: په دغه وخت کې زما بنده څه وويل؟ پوښتې وايي هغه ستا ستاينه وکړه او وې ويل: موږ د الله يو او الله ته ورګرځيدونکي يو، نو الله وايي: په جنت کې هغو ته کور جوړ کړئ او هغه کور په حمد سره ونوموئ.

– کله چې مؤمن بنده د مشکلاتو په وړاندې پر آيتونو او احاديثو عمل وکړي، صبر وکړي، الله تعالی خپل اجـــر او ثـــواب څخه غواړي بدې ته په نيکۍ او ښښې سره ځواب وايي بيشکه چې دغه بنده د ايمان او اسلام غوښتنه په عمل کې ثابته کـــړه له دې کبله الله متعال ورته بې حسابه اجر او ثواب ورکوي. ځکه هرڅوک چې صبر اوښښنه وکړي په رښتيا سره چې لـــوی کار يې تر سره کړ.

**معنای کلمات:**(مشقت: سختي)(شکوه: شکايت کول)(انزوا: کناره کيدل)(عيادت:د مريض پوښتنه کول، احوال اخيستل)

**د تدريس تګلاره:** پوښتنې او ځوابونه، انفرادي او ګروپي، توضيحي او تشريحي

**مرستندويه درسي توکي:** کتاب، تخته، تباشير...

| وخت | فعاليتونه |
|---|---|
| ۵دقيقې سريزه | ښوونکی ټولګي ته له ننوتلو سره سم له سلام اچولو، او د الله تعالی له حمد او ثناء او پر پيغمبرﷺ باندې لـــه درود ويلو، د زده‌کوونکو د احوا ل له پوښتنې، د ټولګي له تنظيم او د حاضرۍ له اخيستلو وروسته مخکينی لوست د کورنۍ دندې په کتلو سره چې په هغې کې د حديث شريف حفظ هم شامل دی، ارزوي.<br>ښوونکی د نوي لوست په اړه د انګېزې پيدا کولو او نوي لوست ته د سرليک پيدا کولو په موخه لـــه څـــو زده‌کوونکو څخه پوښتنې کوي، لکه: ۱. شکر کول څه مفهوم لري؟ ۲. څوک د شکر ډولونه بيانولی شي؟ |
| ۲۵دقيقې د لوست وړانـــدې کول | ښوونکی د پورتنۍ پوښتنې د سم ځواب له اورېدلو څخه وروسته د لوست سرليک چې (پرتکاليفو صبر) دی د زده‌کوونکي په لاس پر تخته باندې په ښکلي او ښايسته خط ليکي.<br>ښوونکی لوست د بېلګې په څېر لولي، په دويم ځل لوستنه کې له زده‌کوونکو څخه غواړي چې له ده څخـــه وروسته يې تکرار کړي او په خپله باندې د دوی تکرار ته غوږ نيسي، او د تير وتنې په وخـــت کـــې د دوی لوستنه سموي.<br>ښوونکی هغه ستونزمنې کلمې چې د تختې پر مخ ليکل شوې دي، پر زده‌کوونکو ژبـــاړي، وروســـته يـــوه زده‌کوونکي ته بلنه ورکوي چې د تختې مخې ته راشي او هغه کلمې له معنـــا ســـره ولـــولي، ښـــوونکی د زده‌کوونکو تير وتنې سموي، او له يوه زده‌کوونکي څخه غواړي چې کلمې له معنا سره ولولي او پـــه عـــين وخت کې له زده‌کوونکو څخه غوښتنه کوي چې د لوست ستونزمنې کلمې په خپلو کتابچو کې وليکي.<br>ښوونکی له زده‌کوونکو غواړي چې ټول لوست په پټه خوله مطالعه کړي او د مهمو ټکو لاندې کرښه وباسي او خپله پدې وخت کې د لوست څنګيز سرليکونه پر تخته ليکي.<br>۱– د صبر حقيقت،<br>۲– د صبر اهميت،<br>۳– د صبر اقسام،<br>ښوونکی له څنګيزو سرليکونو څخه په ګټه اخيستلو سره لوست تشريح کوي او په ارزښتناکو کلمو بانـــدې ډېر ټينګار کوي.<br>ښوونکی د لوست له توضيح څخه وروسته زده‌کوونکو ته لارښوونه کوي چې د تختې پر مخ ليکلې کلمې په خپلو کتابچو کې وليکي.<br>ښوونکی زده‌کوونکي په درېو يا څلورو ډلو وېشي او تنظيموي يې، دوی ته لارښوونه کوي چې د صبر په اړه |

| | |
|---|---|
| | يو له بل سره بحث وکړي او د بې صبرى په اړه هم يو له بل سره خبرې وکړي بيا يې په لنډ ډول په يوه پاڼه کاغذ کې وليکي او ښوونکى د دې لړۍ سرپرستي کوي.<br>ښوونکى د زده‌کوونکو د بحث پر وخت د اړتيا په صورت کې له دوى سره ګډون کوي او کمزوري زده‌کوونکي زيات هڅوي.<br>ښوونکى د ډله ييز کار له پاى ته رسېدو وروسته د هرې ډلې له مشر څخه غواړي چې د ټولګي مخې ته راشي او د بحث پايلې ټولو زده‌کوونکو ته ووايي، خپله د دوى دکار پايلې ارزوي او تيروتنې يې له توهين پرته اصلاح کوي.<br>**ارزونه:**<br>ښوونکى دې په شفاهي او يا تحريري ډول زده‌کوونکي و ارزوي او د لوست د زده کړې په هکله دې ځان ډاډمن کړي. |
| ۱۰دقيقې | **لنډيز:**<br>دا لوست په لاندو ټکو کې لنډيز کيږي.<br>۱– د صبر حقيقت د نفس دي متوجه کول په کومو کې چې هغه نه غواړي.<br>۲– د صبر فضيلت په قرآني آيتونو او نبوي احاديثو ثابت شوى دى.<br>۳– صبر په درې ډوله دى– صبرپرطاعت – صبر له معصيت – صبر پر مصيبت.<br>۴– د ناروغۍ په ورځو کې صبر کول دګناهونو د له منځه وړلو سبب کيږي.<br>۵– خداى تعالى صابر انسان دوست ګڼي.<br>٦– دصبر پايله جنت دى. |
| ۵دقيقې | **کورنۍ دنده:**<br>ښوونکى زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې هر يوېې د صبر ډولونو په څو کرښو کې شرح کړي. |

دوه ویشتم لوست:

## سرلیک: د مسلمان حقوق

**مخ: ۷۵**

**وخت: دوه درسي ساعتونه**

**موخې: زده کوونکي باید:**

۱ – د حدیث شریف متن په سم ډول ولوستلای شي.

۲ – د حدیث شریف د کلمو پر معنا سم وپوهېږي.

۳ – متقابل لازم حقوق وپیژني.

۴ – متقابل حقوق سم تشریح کړای شي.

**اضافي معلومات :**

لکه څنګه چې اسلام مؤمنان یو دبل ورووڼه ګڼلي همدا رنګه یې متقابل حقوق هم ورته ایښي دي، چې د مختلفو روایتونو په پرتله د حقوقو شمیر فرق کوي.

علامه ابوبر الجزا ئري د متقابلو حقوقو اودندو په هکله اوږد بحث کړی دی:

۱ – مسلمانان باید په مالي اوقتصادي مرستو او د یو دبل د ستونزو په لیرې کولو کې ځان و نه سپموي.

۲ – هر یو د دوی باید یو دبل مرستندوی او ملاتړی وي او د هغه اړتیاوې په خپلو اړتیاوو وړاندې وګڼي، یو د بل د حال پوښتنه وکړي که ناروغ وي، باید پوښتنې ته یې ورشي، په کارونو کې د وس په کچه ورسره مرسته وشي او که کورته یې راشي، درناوی یې وکړي، که خبره ورته کوي، خبرو ته یې غوږ ونیول شي.

۳ – خپل مسلمان ورور یوازې په نیکۍ یاد کړي. په شتون او نه شتون کې یې عیب او کمې ونه وایي، رازونه یې ونه سپړي او نه یې د پټو رازونو د څرګندلو هلې ځلې وکړي، دکورنۍ او ژوند په هکله یې هم باید پلټنه ونشي.

په ارامی او مهربانی ورته نصیحت وکړي په هیڅ وجه ملامتیا او رټنه ونکړل شي.

۴ – له مسلمان ورور سره د دوست په توګه خبرې وشي او په هغه نامه یې یاد کړي، چې دی یې خوښوي. دنورو سلام او حال پوښتنه ورته ورسول شي، دهغه د نیک نامه په څرګندیدو خوشحاله شي او هغه ته د نورو په وړاندې نصحت ونه کړي.

امام شافعي رحمة الله فرمايي: هرڅوک چې بل نفر ته په پټه توګه نصیحت کوي، نو ده سم او حکیمانه کار ترسره کړی دی او که د نورو په وړاندې ورته نصیحت کوي په حقیقت کې یې د هغه آبرو توی کړې او هغه عزت یې تر پښو لاندې کړی دی.

۵ – د مسلمان ورور له سهوو څخه باید سترګې پټې شي او رازونه یې پټ وساتل شي او په هغه نیک ګمان ولري. که کومه پټه او ښکاره ګناه یې کوله، اړیکې ورسره ونه شلوي، بلکې باید هغه توبې ایستلوته وهڅوي. که هغه په ګناه ټینګار کاوه نو بیا اختیار لري چې هغه پریږدي او له د هغه په هکله نصیحت ته دوام ورکوي. حضرت ابوداود رحمة الله علیه وايي: «کله چې ویې وینی چې د دوست اخلاق دې تغیر شوي، نو هغه مه پرېږده، ځکه انسان کله په سمه نیغه لاره درومي او کله په بې لارو او کږنګونو.»

٦- مسلمان باید د دوستی او وروړګلوی په اړیکو کې په ټولو شرطونو کې وفا ولري وي، ځکه د اړیکو پرې کول دوستي له منځه وړي. د دوست له مړګه وروسته له هغه د اولادونو سره د دوستی اړیکې باید ټینګې شي، ځکه د الله رسولﷺ د یوې بوډۍ ښځې ډېر احترام کاوه په دې هکله ورځنې پوښتنه وشوه. ده په ځواب کې وویل: کله یې چې د خدیجې سره ژوند کاوه دا ښځه زموږ کره راتله او دخدیجې سره یې دوستي کوله او زه د هغو اړیکو په هکله ځان قرضدار ګڼم. دقربانۍ له ښښو نښانو څخه یوه داده چې هیڅکله د خپل دوست له دښمن سره دوستي ونکړي.

٧- هغه د سختو کارونو په ترسره کولو مجبور نکړئ او د امکان تر کچې د هغه دشتو او رتبې په هکله انتظار ونه باسئ، ځکه په دین کې وروړګلوي د ایمان او دیني ارزښتونو په بنسټ ولاړه ده، نو باید مادي رنګ او بوی وا نخلي. ([1])

- د مسلمانانو دحقوقو په هکله له رسولﷺ څخه ډېر مبارک حدیثونه روایت شوي دي په دې توګه: (عَن أَبِی هُرِیرَة قالَ قالَ رَسُولُ اللهﷺ لِلمُؤمِنِ عَلی الْمُؤمِن سِتَّ خِصَالٍ یَعُودُه إذا مَرِضَ وَیُشهِدُهُ إذا مَاتَ وَیُجِیبُهُ إذا دَعَاه ویُسلِّم عَلیه إذا لقِیهِ وَیُشمّتهُ إذا عَطسَ وَیَنصَح لهُ إذا غَابَ) {رواه النسائی}

ژباړه: له حضرت ابوهریرهؓ څخه روایت دی وایي: رسول اللهﷺ وفرمایل: یو مؤمن پربل مؤمن باندې شپږ حقونه لري: که مریض شي پوښتنه یې وشي، که مړشي جنازې ته یې ورشي، که مېلمستیا ته یې را وبولي هغه قبوله کړي، کله چې سره مخامخ شي، نو سلام دې پرې واچوي، که پرنجی وکړي او الحمدلله ووایي ځواب یې ورکړل شي او که مسافرشي، د ده په هکله ښېګڼه ترسره شي.

(عَن أَبِی هُرِیرَة قالَ قالَ رَسُولُ اللهﷺ حَقُ الْمُسلم عَلی الْمُسلمِ خَمسٌ رَدَّ السَّلام وَعَیَادَة الَمرِیض وَإتبَاعِ الجَنَائز وَإجابَةِ الدَّعوَة وَتَشمَیت العَاطِس) {متفق علیه}

ژباړه: له حضرت ابوهریرهؓ نه روایت دی وایي: رسول اللهﷺ وفرمایل: د یوه مسلمان پربل مسلمان باندې پنځه حقونه دي. د السلام علیکم ځواب ورکول، د ناروغۍ پوښتنه، جنازې ته تلل، د بلنې قبلول او د پرنجي ځواب په یرحمک الله سره ورکول.

حضرت رسول اللهﷺ د سلام اچولو او د ناروغ د پوښتنې په اړه چې د لوست څنګیز سرلیکونه دي، لارښوونه کړې ده: (عَن أَبِی هُرِیرَة قالَ قالَ رَسُولُ الله ﷺ یُسلِّمُ الرَاکِبُ عَلی المَاشِی وَالمَاشِی عَلی القَاعِد وَالقلِیل عَلَی الکَثِیر) {متفق علیه}

ژباړه: له حضرت ابوهریرهؓ څخه روایت دی چې رسول اللهﷺ وفرمایل: باید سپور پر پلي او پلی پر ناست او کوچنۍ ډله پر لویه ډله سلام واچوي.

(عَن أنسٍ أنَّ رَسُولَ الله ﷺ قالَ یَا بُنیَّ إذا دَخلتَ عَلی أهلِکَ فَسلُم یَکُونَ بَرکَةٍ عَلیکَ وَعَلی أهلِ بَیتِکَ) {رواه الترمذی}

ژباړه: له حضرت انسؓ نه روایت دی، چې رسول اللهﷺ فرمایلي دي: اي بچیه کله چې خپل کور او کهول ته ننوځې، نو په هغوی باندې سلام اچوه، نو دا سلام به ستا او ستا دکورنۍ لپاره برکت وي.

عَن ثَوبَان قالَ قالَ رَسُولُ اللهﷺ إنَّ الْمُسلِم إذا عَادَ أخاهُ الْمُسلمِ لَم یَزَل فِی خَرقَةِ الجَنَةِ {رواه مسلم}:

ژباړه: همدارنګه له حضرت ثوبانؓ نه روایت دی چې رسول اللهﷺ فرمایلي دي: په یقیني توګه کله چې یو مسلمان د خپل مسلمان ورور د ناروغۍ پوښتنه کوي. هغه به د تل لپاره د جنت په باغچه کې وي یعنې بدله یې جنت دی.

**د کلمو معنا:** (واعظ: نصیحت کوونکی) (عقیقه – د پسه حلالول دي کله چې ماشوم یا ماشومه پیداشي، په اوومه ورځ یې ویښتان خریي، زوی لپاره دوه پسونه او د لور لپاره یو پسه) کدورت ــ زړه تنګوالی، بغض ــ کینه، تدفین ــ خاورو ته سپارل.

[1] منهاج المسلم- ص ١٥٠

**د تدریس تگلاره:** پوښتنې او ځوابونه، انفرادي او گروپي، توضیحي او تشریحي
**مرستندویه درسي توکي:** کتاب، تخته، تباشیر...

| وخت | فعالیتونه |
|---|---|
| ۵دقیقې سریزه | ښوونکی ټولگي ته له ننوتلو سره سم له سلام اچولو، او د الله تعالی له حمد، ثناء او پر پیغمبرﷺ له درود ویلو څخه وروسته د زده‌کوونکو د احوال پوښتنه کوي، د ټولگي له تنظیمولو او د حاضرۍ له اخیستلو وروسته مخکینی لوست د څو پوښتنو په کولو سره ارزوي، لکه:<br>۱- څوک چې د صبر ډولونه بیانولای شي؟<br>۲- څوک صبر له معصیت څخه بیل او شرح کولای شي؟ |
| ۲۵دقیقې دلوست وړاندې کول | ښوونکی د پورتنۍ پوښتنې د سم ځواب له اورېدلو څخه وروسته د لوست سرلیک چې (دمسلمان حقوق) دي د زده‌کوونکي په لاس پر تخته باندې په ښکلي او ښایسته خط لیکي.<br>ښوونکی دا کلمې پر تخته لیکي: واعظ، عقیقه، کدورت اوتدفین.<br>ښوونکی لوست د بېلگې په څېر لولي، په دویم ځل لوستنه کې له زده‌کوونکو څخه غواړي چې له ده څخه وروسته یې تکرار کړي او په خپله باندې د دوی تکرار ته غوږ نیسي، او د تیروتنې په وخت کې د دوی لوستنه تصحیح کوي.<br>ښوونکی هغه ستونزمنې کلمې چې د تختې پر مخ لیکل شوې دي پر زده‌کوونکو ژباړي، وروسته یوه زده‌کوونکي ته بلنه ورکوي چې د تختې مخې ته راشي او هغه کلمې له معنا سره ولولي، ښوونکی د زده‌کوونکو تیروتنې سموي او له یوه زده‌کوونکي څخه غواړي چې کلمې له معنا سره ولولي او په عین وخت کې له زده‌کوونکو څخه غوښتنه کوي چې د لوست ستونزمنې کلمې په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>ښوونکی له زده‌کوونکو غواړي چې ټول لوست په پټه خوله مطالعه کړي او د مهمو ټکو لاندې کرښه وباسي او خپله پدې وخت کې د لوست څنگیز سرلیکونه پر تخته لیکي.<br>۱- د صبر حقیقت،<br>۲- د صبر اهمیت،<br>۳- د صبر اقسام،<br>یو څنگیز سرلیک لولي او بل یې ولیکي:<br>۱- دحدیث فواید،<br>۲- حق سلام ویل،<br>۳- هغه ځایونه چې سلام ویل پکې ښه ندي،<br>۴- بلنه قبولول،<br>۵- د ناروغ پوښتنه،<br>٦- د مسلمان په جنازه کې گډون کول.<br>ښوونکی له څنگیزو سرلیکونو څخه په گټه اخیستلو سره لوست تشریح کوي او په ارزښتناکو کلمو باندې ډېر ټینگار کوي.<br>ښوونکی د لوست له توضیح څخه وروسته زده‌کوونکو ته لارښوونه کوي چې د تختې پر مخ لیکلې کلمې په خپلو کتابچو کې ولیکي. |

| | |
|---|---|
| ښوونکی زده کوونکي په درېو یا څلورو ډلو وېشي او تنظیموي یې، دوی ته لارښوونه کوي چې د صبر په اړه یو له بل سره بحث وکړي او د بې صبری په اړه هم یو له بل سره خبرې وکړي بیا یې په لنډ ډول په یوه پاڼه کاغذ کې ولیکي او ښوونکی د دې لړۍ سرپرستي کوي.<br>ښوونکی د زده کوونکو د بحث پر وخت د اړتیا په صورت کې له دوی سره ګډون کوي او کمزوري زده کوونکي زیات هڅوي.<br>ښوونکی د ډله ییز کار له پای ته رسېدو وروسته د هرې ډلې له مشر څخه غواړي چې د ټولګي مخې ته راشي او د بحث پایلې ټولو زده کوونکو ته ووایي، خپله د دوی دکار پایلې ارزوي او تیروتنې یې له توهین پرته اصلاح کوي.<br>**ارزونه:**<br>ښوونکی دې په شفاهي او یا تحریري ډول زده کوونکي و ارزوي او د لوست د زده کړې په هکله دې ځان ډاډمن کړي.<br>**لنډیز:**<br>دا لوست په لاندو ټکو کې لنډیز کیږي.<br>۱- په اسلام کې اخلاقي نظام دا غواړي چې یو مسلمان باید بل مسلمان ته د متقابل احترام او خیر غوښتنې قائل وي.<br>۲- د مسلمان حق رعایت کول په بیلا بیلو پړاوونو کې کله فرض، کله واجب، کله سنت او کله مستحب وي.<br>۳- په ځینو وختونو کې سلام نه اچول کیږي.<br>۴- څوک چې د ناروغ پوښتنه کوي د خدای د رحمت مستحق ګرځي.<br>۵- په جنازه کې اشتراک کول لوی اجر دی، چې له غره سره تشبیه دی. | ۱۰دقیقې |
| **کورنی دنده:**<br>ښوونکی زده کوونکو ته دنده ورکوي چې د حدیث متن زده کړي کړي او په خپلو کتابچو کې یې ولیکي. | ۵دقیقې |

درویشتم لوست:

## سرلیک: دوه مخي

**مخ:** ۸۰

**وخت:** دوه درسي ساعتونه

**موخې:** زده کوونکي باید:

۱- د حدیث شریف متن په سم ډول ولوستلای شي.

۲- د لوست مفهوم په سم ډول زده کړي.

۳-د حدیث شریف د کلمو پر معنا سم وپوهېږي.

۴- ښه صفتونه په ځان کې پیدا کړي او بد صفتونه له ځان لرې کړي.

۵- د بد خصلت د زیانونو په هکله یوه مقاله ولیکلی شي.

**اضافي معلومات :**

- په ځینو انسانانو کې ناخوښه او ناوړه صفتونه وي، لکه: ظلم، تیری، کینه، شومتیا، منافقت، درغلي، غیبت، ځان غوښتنه، تنبلي، بد ګماني او داسې نور. یوله دغه یاد شویو ناوړه صفتونو څخه دوه مخي ده چې دا صفت له مسلمان سره هېڅ نه ښایي بلکې د منافقانو خوی دی، چې په زړه کې یې یو څه او په ژبه بل څه څرګندوي. دوه مخي انسان د الله جل جلاله په وړاندې رسوا کوي.

- کوم انسانان چې خپل ظاهر او باطن له داسې صفتونونه څخه نه پاکوي، نو په حقیقت کې خپل شخصیت په دنیا او آخرت کې د نابودۍ او تباهۍ کندې ته اچوي او پرځان ظلم کوي.

- دا چې مسلمان د هرچا لپاره خیر غوښتونکی دی آن تر دې چې کله نورو ته پرځان غوره والی ورکوي، هیڅکله هغو ناوړه خویونو ته مخه نه کوي، چې د الله او پیغمبر له لوري رټل شوي دي، ځکه پوهیږي، چې دا کار اصلاً د مسلمان د شان او دبدبې سره نه ښایي.

- دوه مخي د خپل ځان په وړاندې بدې او ناوړه پایلې لري، چې د دوو وروڼو، کورنیو، قبیلو، قومونو ترمنځ او بلآخره دیوې ټولنې د نړیدو لامل کیږي اوله بلې خوا دوه مخي د مسلمانانو ترمنځ د دښمنۍ او بې باورۍ سبب کیږي، نو همدا وجه ده، چې د اسلام ستر پیغمبر دوه مخي سړي ته ترټولو ناوړه سړی ویلی دی.

لکه چې فرمایي: دوه مخي د عذاب وړ ده او دوه مخی سړی دوزخي دی.

همدارنګه فرمایي:(عَن عِمَاربِن يَاسِرعَن النّبیﷺ قَالَ مَن كَانَ ذاالوَجهَين فِي الدُنيَاكانَ لهُ لسَانانِ مِن نّارِيَومَ القِيَامَة) سم ابن حبان

ژباړه: له حضرت عمار بن یاسر رضي الله عنه نه روایت دی، چې رسول الله ﷺ فرمایي: څوک چې په دنیا کې دوه مخي کوي د هغو لپاره به په قیامت کې د اور دوه ژبې وي.

- که چیرته د اسلام تاریخ ته یو نظر واچوو. نو تورمخي او دوه مخي کسان به ووینو چې دغه ناوړه صفتونه د اسلامي ټولنې د بدمرغۍ او تباهۍ سبب کیږي.

**دځینو کلمو معنا:** (معادن: د معدن جمع ده، ذخایر) (مناصب: د منصب جمع ده) (نایاب:کمیاب) (زرع: کښت)

**د تدریس تګلاره:** پوښتنې او ځوابونه، انفرادي او ګروپي، توضیحي او تشریحي

**مرستندویه درسي توکي:** کتاب، تخته، تباشیر...

| وخت | فعالیتونه |
| --- | --- |
| ۵دقیقې سریزه | ښوونکی ټولګي ته له ننوتلو سره سم له سلام اچولو، او د الله تعالی له حمد، ثناء او پر پیغمبرﷺ له درود ویلو څخه وروسته د زده‌کوونکو د احوال پوښتنه کوي، د ټولګي له تنظیمولو او د حاضرۍ له اخیستلو وروسته مخکینی لوست د څو پوښتنو په کولو سره ارزوي، لکه: د مخکیني لوست حدیث شریف څوک له مخې لوستلای شي؟<br>د مخکیني لوست د حدیث شریف له ګټو څخه دوې ګټې ولیکئ؟ |
| ۲۵ دقیقې دلوست وړاندې کول | ښوونکی د نوي لوست په اړه د انګېزې او نوي لوست ته د سرلیک پیدا کولو په موخه له زده‌کوونکو څخه پوښتنې کوي، لکه: هغه څوک چې د دوو مسلمانانو تر منځ بدې خبرې وړي څه ورته ویل کېږي؟<br>د لوست وړاندې کول:<br>ښوونکی د سم ځواب له اورېدلو څخه وروسته د نوي لوست سرلیک چې (دوه مخې) ده د یو تن زده‌کوونکي څخه غواړي چې په ښکلي خط سره یې د تختې پر مخ ولیکي.<br>ښوونکی زده‌کوونکو ته دنده ورکوي چې لوست په پټه خوله ولولي او ستونزمنې کلمې یې له خپلو ځانونو سره یاد داشت کړي او د (نفرت او رفق) کلمې له معنا سره پر تخته ولیکي.<br>ښوونکی له یو زده‌کوونکي څخه غواړي چې د لوست څنګیز سرلیکونه په ښکلي خط سره پر تخته ولیکي.<br>ښوونکی په یو زده‌کوونکي د لوست سرلیکونه د تختې له مخې لولي.<br>ښوونکی زده‌کوونکي خپلو کتابونو ته متوجه کوي او لوست په لوړ او مناسب آواز سره لولي، د لوستلو پر وخت د لوست ځینې تکراري کلمې له ځان سره لیکي.<br>ښوونکی د حدیث شریف متن په یوه زده‌کوونکي او نور پاتې لوست په څو نورو زده‌کوونکو لولي.<br>ښوونکی زده‌کوونکي د لوستلو پر وخت هڅوي.<br>ښوونکی له زده‌کوونکو څخه غواړي چې د حدیث شریف راوي د کتاب په مرسته معرفي کړي.<br>ښوونکی د څنګیزو سرلیکونو په مرسته لوست تشریح کوي او د توضیح په وخت کې د لوست په مهمو ټکو ټینګار کوي. |
| ۱۰دقیقې | ښوونکی زده‌کوونکو ته دنده ورکوي چې د لوست کلمې د تختې له مخې په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>ښوونکی زده‌کوونکي پر تختې د کلمو د لیکلو پر وخت کنترول او څارنه یې کوي.<br>ښوونکی زده‌کوونکي په مناسبو ډلو وېشي او دنده ورکوي چې هره یوه ډله د دوه مخي سړي په اړه یو له بل سره بحث وکړي.<br>ښوونکی د ډله ییز کار پر مهال کې ټولګی کنترول او نظم یې ساتي او د اړتیا پر وخت له ځینو ډلو سره مرسته کوي.<br>ښوونکی د ګروپي کار له پای ته رسېدلو څخه وروسته زده‌کوونکي هڅوي او د بحث پایلې ارزوي.<br>**ارزونه:** ښاغلی ښوونکی د خپل ډاډ لپاره له زده‌کوونکو څخه د لوست پوښتنې کوي. |
| ۵دقیقې | **کورنۍ دنده:** ښوونکی له زده‌کوونکو څخه غواړي چې د حدیث شریف متن له ژباړې سره په خپل کور کې حفظ کړي او همدارنګه دوی مکلفوي چې په خپلو کورونو کې د دوه مخي د زیانونو په اړه یوه مخ مقاله ولیکي. |

**څلر ویشتم لوست:**

## سرلیک: د خوب اداب

**مخ:** ۸۴

**وخت:** دوه درسي ساعتونه

**موخې:** زده کوونکي باید

۱– د حدیث شریف متن په سم ډول ولوستلای شي.

۲– د حدیث شریف د کلمو پر معنا سم وپوهېږي.

۳– دحدیث شریف رواي سم معرفي کړلی شي.

۴– د خوب ادبونه رعایت کړلی شي.

**اضافي معلومات:**

– مسلمان خوب او استراحت د الله تعالی له نعتونو څخه ګڼي لکه: الله تعالی په ډېرو مبارکو آیتونو کې د خوب پــه هکلــه فرمايي: (لِتسكُنوُا فِيه) یعنې تاسې په کې ارام کوئ.

– د شپې لخوا هوساینه، خوب او استراحت د ورځني عبادت او دبدن د ارامی لپاره ډېره ضروري ده او دا ډېر لوی نعمت دی چــې انسان یې باید شکریه ادا کړي له همدې وجهې مسلمان يې په ځان لازمه ګڼي، چې دخوب په هکله لاندې ادبونه مراعات کړي:

۱– که چیرې ضروري کارونه، لکه: علمي بحث او څېړنه، مطالعه، له میلمه سره ناسته او خبرې د خپلې کورنۍ مانع ونــه ګرځي بهتره داده چې مسلمان د ماسختن لمانځه وروسته استراحت وکړي. څکه حضرت ابوهریره رضی الله عنه روایت کــوي، چــې رسول الله ﷺ د ماسختن له لمانځه مخکې خوب کول او د ماسختن له مانځه وروسته خبرې کول نه خوښول.

۲– کوښښ دې وشي چې له ویده کیدو مخکې اودس ولرو، لومړی پرښي اړخ څملو او بیا وروسته پــه کــیڼ اړخ ویــده کیدل هم څه منع ندي، خو په خیټه ویده کیدل ښه نه دي له خوب څخه مخکې د لاندې ذکرونو ویل مــستحب دي: درې دیرش ځله «سبحان الله، درې دیرش ځله والحمد لله او څلور دیرش ځله والله اکبر» او بیا وروسې یوځــل د «لاالــه الاّ الله وحده لاشریک له الملک وله الحمد وهو علی کلّ شیءٍ قدیر» ویل دي اوهمدارنګه د فاتحې سورت اود بقرې پنځه لــومړني آیتونه او آیة الکرسي ویل مستحب دي.

– کله چې مسلمان له خوبه پاڅیږي د دې دعا لوستل هم مستحب دي: «الحمدُ لله الذی رَدّ عَلیّ رُوحِی وَعَافَانی فِی جَـسَدِی وَأذِن لِی بِذِکرِی» دا دعا هم ویلی شي: « لاإلهَ إلاّالله وَحدهُ لا شَریکَ لهُ الُملکُ وَلهُ الحَمدُ وَهُو عَلی کُلّ شَیءٍ قَدیر. سَـــبحَانَ اللهِ وَالحَمدُ للهِ وَلا إله إلاّ الله وَاللهُ أکبَر وَلا حَولَ وَلا قُوةَ إلاّ بِالله »

– که چیرته دا مسنونه طریقه له خوب نه مخکې لکه څنګه یې چې حق دی رعایت شي، نو په باوري توګه د مسلمان خــوب هم عبادت ګڼل کیږي، څکه موږ نشو کولای چې یوازې په ورځ کې په هغه کچه د الله عبادت وکړو، چې دکــوم هــدف لپاره پیدا شوي یو، لکه چې الله فرمایي: «وما خلقت الجن والانس إلاّ لیعبدون» : یعنې موږ پیریان او انسانان ندي پیدا کــړي مګر د عبادت لپاره.

کله څنګه چې اشاره وشوه خو به په حقیقت کې یو الهي نعمت دی چې کله د انسان روح، مغز او بدن په معنوي او فزیکـــي کارونو ستړی کیږي، نو همدا خوب دی چې ټولې ستړیاوې لیرې کوي او انسان ته ارامي وربښي.

– په جنت کې خوب نشته اونه هلته جنتیان له ستړیا سره مخ کیږي، پدې هکله له رسول اللهﷺ نه پوښتنه وشوه، چې آیا پـــه جنت کې خوب شته؟ پدې هکله رسول اللهﷺ ځواب ورکړ: (عَن جَابِرٍقالَ سَأَلَ رَجُلٌ رَسُولَ اللهِ ﷺ أيَنَام أهلُ الجَنّةِ قـــالَ النَـــومُ أخُوالَمَوت وَلا يَمُوتُ أهل الجَنّة) {رواه البيهقى}

ژباړه: له حضرت جابرؓ نه روایت دی چې یو سړي له رسول اللهﷺ نه پوښتنه وکړه آیا په جنت کې جنتیان خوب کـــوي؟ رسول اللهﷺ وفرمایل:خوب دمر ګ ورور دی او جنتیان نه مري.

– خوب له استراحت سره څه تو پیرلري؟ د خوب اواستراحت ترمنځ توپیر څرګند دی: د خوب به وخت کې د انسان لـــه دوو روحونو څخه چې په بدن کې یې دي یوه خارجیږي او انسان په خپل ځان حاکم او تسلط نلري او ظاهري حـــواس لـــه لاسه ورکوي اما ژوندی وي، ځکه هغه بل روح چې د مرګ په وخت کې ورځني وځي په بدن کې یې باقي وي لکه چې الله فرمایي: (اللَّهُ يَتَوَفَّى الْأَنفُسَ حِينَ مَوْتِهَا وَالَّتِي لَمْ تَمُتْ فِي مَنَامِهَا فَيُمْسِكُ الَّتِي قَضَى عَلَيْهَا الْمَوْتَ وَيُرْسِلُ الْـــأُخْرَى إِلَـــى أَجَـــلٍ مُسَمًّى إِنَّ فِي ذَلِكَ لَآيَاتٍ لِّقَوْمٍ يَتَفَكَّرُونَ) ([1]) { الزمر /۴۲}

ژباړه: هغه همدغه الله دی چې دمرګ په وخت کې ساګانې اخلي او څوک چې لاتر اوسه پورې نه دی مړشوی دهغـــه روح په خوب کې قبض کوي، بیا چې هغه د مرګ پریکړه پرچا باندې نافذوي، هغه ساتي او د نورو ساګانې تریو ټـــاکلي وخـــت پورې بیرته (جسدونوته) لیږي. په دې کې غټې نښانې دي دهغو کسانو لپاره چې غور او فکر کوونکي دي.

– استراحت د هوساینې غوښتنه ده. البته دبیداری په حالت کې دا هوساینه برابره ده دماغي وي او یا جسمي. مثلا یو نفـــر دماغي کار کوي، لکه: مطالعه، لیکنه، تالیف، تدریس او یا فزیکي کارکوي اوبیا د ستړیا د له منځه وړو لپاره چپ کینـــي او یا اوږد غزیږي چې همدې ځنډ ته استراحت وایي.

**دځینوکلمو معنا:**(حراس خوف، ترس) (اتکا – تکیه کردن، توکل) (سان – مثل، طور) (مسنونه– سنت)

**د تدریس تګلاره:** پوښتنې او ځوابونه، انفرادي او ګروپي، توضیحي، تشریحي او مباحثوي

**مرستندویه درسي توکي:** کتاب، تخته، تباشیر...

| وخت | فعالیتونه |
|---|---|
| ۵دقیقې سریزه | ښوونکی ټولګي ته له ننوتلو سره سم له سلام اچولو، او د الله تعالی له حمد، ثناء او پر پیغمبـــرﷺ لـــه درود ویلو څخه وروسته د زده‌کوونکو د احوال پوښتنه کوي، د ټولګي له تنظیمولو او د حاضـــری لـــه اخیـــستلو وروسته مخکینی لوست د څو پوښتنو په کولو سره ارزوي، لکه:<br>– څوک ویلای شي چې دمقام او منصب له مخې بهترین شخصیت څوک دی؟<br>– څوک ویلای شي چې له دوه مخي سړي سره په آخرت کې کومه معامله کیږي؟ |
| ۲۵ دقیقې دلوســـت | ښوونکی د صحیح ځواب له اوریدلو څخه وروسته د نوي لوست سرلیک چې (د خوب آداب) دی لـــه یـــو |

[1] سوره الؤمر– أیت ۴۲

| | |
|---|---|
| وړانـــدې کول | زده‌کوونکي ځخه غواړي چې په ښکلي خط سره یې د تختې پر مخ ولیکي.<br>ښوونکی زده‌کوونکو ته دنده ورکوي چې لوست په پټه خوله ولولي او ستونزمنې کلمې یې له ځپلو ځـــانونو سره یاد داشت کړي او د (حراس، اتکا، توکل، مثل، مسنونه. کلمې له معنا سره پر تخته ولیکي.<br>ښوونکی له یو زده‌کوونکي ځخه غواړي چې د لوست ځنګیز سرلیکونه په ښکلي خط سره پر تخته ولیکي.<br>۱- خوب د بدن لپاره ضروري دی،<br>۲- خوب هم کیدلای شي په عبادت کې حساب شي،<br>۳- خوب کول پربنې اړخ،<br>۴- د خوب په وخت کې مسنونه دعاګانې ویل،<br>۵- وختي خوب کول.<br>ښاغلی ښوونکی د ځنګیزو سرلیکونو په مرسته لوست تشریح کوي او د توضیح په وخت کې د لوســـت پــه مهمو ټکو ټینګار کوي.<br>ښوونکی په یو تن زده‌کوونکي د لوست سرلیکونه د تختې له مخې لولي.<br>ښوونکی زده‌کوونکو ته دنده ورکوي چې د لوست کلمې د تختې له مخې په ځپلو کتابچو کې ولیکي.<br>ښوونکی زده‌کوونکي ځپلو کتابونو ته متوجه کوي او لوست په لوړ او مناسب آواز سره لولي، د لوستلو پر وخـــت د لوست ځینې تکراري کلمې له ځان سره لیکي.<br>ښوونکی زده‌کوونکي پر تختې د کلمو د لیکلو پر وخت کنترول او ځارنه یې کوي.<br>ښاغلی ښوونکی زده‌کوونکي په مناسبو ډلو وېشي او دنده ورکوي چې هره ډله د خوب د آدابو په اړه له یو بل سره بحث وکړي.<br>ښوونکی د ډله ییز کار پر مها ل کې ټولګی کنترول او نظم یې ساتي او د اړتیا پر وخت له ځینو ډلو ســـره مرسته کوي.<br>ښوونکی د ډله ییز کار له پای ته رسېدلو ځخه وروسته زده‌کوونکي هڅوي او د بحث پایلې ارزوي.<br>**ارزونه:**<br>ښوونکی د ځپل ډاډ لپاره له زده‌کوونکو ځخه د لوست پوښتنې کوي. |
| ۱۰دقیقې | **لنډیز:**<br>دا لوست په لاندو ټکو کې خلاصه شوی دی.<br>۱- حضرت براءﷺ او پلار یې هر یو د جلیل القدره صحابیانو له جملې ځخه دي. پر دې سر بیره د احد له غزوې سره سره یې په ځوارلسو غزوو کې ګډون کړی دی، نوموړی په ۷۲ هجري کال په کوفه کې وفـــات شوی دی.<br>۲- لکه ځنګه چې د اسلام مبارک دین په ورځني ژوند کې لارښوونه کوي همدارنګه د خوب کولو په هکله هم لارښوونې لري.<br>۳- پردې سربیره خوب د انسان لپاره اړتیا په عین حال کې عبادت هم دی.<br>۴- حضرت رسول اللهﷺ د ماخستن د لمانځه نه مخکې خوب او وروسته خبرې نه خوښولې. |
| ۵دقیقې | **کورنۍ دنده:**<br>ښوونکی دې له درسي کتاب ځخه زده‌کوونکو ته کورنۍ دنده ورکړي. |

لوست: پنځه ویشتم

## سرلیک: اسلام د ژوند کړنلاره ده

**مخ:** ۸۹

**وخت:** دوه درسي ساعتونه

**موخې:**

زده کوونکي باید:

۱_ د اسلام د اقتصادي تګ لارې ښېګڼې وپېژني.

۲_ د کاپیټالېزم او سوسیالېزم اقتصادي نظام په هکله معلومات ترلاسه کړي.

۳_ د اسلام د اقتصادي تګ لارې ځانګړتیاوې وپېژني او نورو ته یې بیان کړی شي.

**لازمي پوهه:**

**لوست: ۲۵_۲۸**

د اقتصادي نظام د تعریفولو لپاره لومړی دنظام تعریف او بیا د اقتصاد تعریف ضروري دی.

نظام: هغه ډله عنصرونه دي چې د دوی ترمنځ څه اړیکې شتون ولري او یا رامنځته شي او دا نظام موخې لرونکی وي.

اقتصاد: په لغت کې منځنۍ تګلاره، منځنی لګښت او منځني ژوند ته وایي.

د اقتصاد لپاره ډېر تعریفونه شوي، خو دوه تعریفونه یې ډېر مشهور دي:

لومړی تعریف: اقتصاد هغو تدبیرونو ته ویل کیږي چې د انساني نامحدودو اړتیاوو او د لازمو محدودو وسایلو ترمنځ همغږي رامنځ ته کوي.

دویم تعریف: اقتصاد په معینو او ټاکلو وسیلو سره زیاتو پایلو او نتیجو ته د رسېدلو یا په ډېرو کمو ممکنه وسیلو سره ټاکلو پایلو او نتیجو ته د رسېدلو لپاره هلې ځلې او زیار ایستل دي.

اقتصاد د انسان یوه ځانګړې تګ لاره ده چې د تولید، توزیع او مصرف په هکله د غوښتنې، ارزښتنې او غوره کولو سره مل او یو ځای وي او تر ټولو زیاته برلاسي هغه ته ور په برخه کړي.

نوموړو تعریفونو ته په پاملرنې سره کولای شو اقتصادي نظام او تګ لاره داسې تعریف کړو:

اقتصادي نظام د هغو مرتبو او منظمو عنصرونو له ډلې څخه عبارت دی چې د تولید، توزیع او لګښت د ارزښتنې او غوره کولو په هکله د ډېرې زیاتې برلاسۍ هڅونه او فعالیت کوي.([1])

**سوسیالېزم ((Socialism)) سوسیالیستي یا ګډ نظام:**

په لنډه توګه کولای شو سوسیالېزم داسې تعریف کړو: سوسیالېزم د مالکیت عمومي کول او د حکومت په لاس کې دهغه راوستل دي چې د یوه پراخه اقتصادي نظام په واسطه تنظیمیږي او د لزوم په صورت کې د زور په واسطه ترسره کېږي. د سوسیالېزم د اقتصادي نظام د پیدایښت لاملونو د اقتصاد د پوهانو او غیر سوسیالیستي مکتبونو د نیوکو او انتقادونو او د پانګوال اقتصادي نظام له فکري بنسټونو سره په ټکر کې داسې تفکر او اندېښنه هم را منځته کړه چې دا نظام په خپلو اصولو سره هېڅکله د اقتصادي مسئلو په حلولو سره ټولنیزې ستونزې له منځه وړلی نه شي. ډېر ټولنیز نامناسب شرطونه، بیکاري،

[1] اقتصاد اسلامي، علامه تقي عثماني

عمومي غریبي، د پانګې او شتون غیر عادلانه وېش، اقتصادي ناانډول والی او هغه بحرانونه چې هر ځل د اقتصادي حالـــت د لا خطرناک کېدو لامل کېده، د سوسیالیستي نظام او د پانګوال نظام د اصولو تر منځ یې ډېره متضاده موقع برابره کــړه. دا هم بایدووایو چې په سوسیالیستي نظام کې ټول ملکیتونه دولتي ګرځي او شخصي ملکیت وجود نه لري او هر څوک د خپل کار په انډول مزد اخلي او په کمونستۍ کې، هلته دوی وایي چې هر چا ته د اړتیا په اندازه مزد ورکول کېږي. مثلاً یو تن د سلو روپو کار کوي، خو د پنځو سوو افغانیو اړتیا لري، نو ده ته به پنځه سوه روپۍ ورکول کېږي، البته دا دوره د دوی پــه نزد یو خیالي جنت دی، خو دې مرحلې ته نه دوی رسېدلي دي او نه به ورسېږي، بلکې دا نظام له نړېدو سره مخامخ شو او سرمایه داري نظامونه هم د ړنګېدو په درشل کې دي.

**د اسلام اقتصادي نظام:**

دا نظام او کړنلاره په دې بنسټ ولاړه ده چې اصلي مالک او خاوند الله دی او د انسان مالکیت او شته موقتي او مجــازي دي، نو باید انسان د حقیقي مالک له امر سره سم عمل وکړي او پرته له دې د انسان مالکیت ناسم ګڼل کېږي او انسانان له الهي نعمتونو او څه چې په ځمکه کې دي، له هغو څخه ټول په مساوي توګه د برخې اخیستلو حق لري، لکه چې الله تعــالی فرمایي: ((هُوَ الَّذِي خَلَقَ لَكُم مَّا فِي الأَرْضِ جَمِيعاً)) بقره/۲۹

ژباړه: الله تعالی هغه ذات دی چې ستاسې لپاره یې هغه څه پیدا کړي چې په ځمکه کې دي او هېڅ وګړی په هېڅ توګه نــه د نژاد نه د وینې او نه د قوم ... په بنسټ له نورو وګړو څخه امتیاز او غوره والی لري او نه کومه کورنۍ یا کومه طبقــه د دې حق لري چې څه شی تر ځان پورې اړین وګڼي او نور ورڅخه محروم کاندي او همدارنګه د روزۍ او خوراکې او د ژونــد تېرولو د وسیلو په لاس ته راوړلو کې ټول وګړي برابر دي او د هلو ځلو او کار په پایله کې د مالکیت تفاوت منځ ته راځي. الله جل جلاله فرمایي: ((نَحْنُ قَسَمْنَا بَيْنَهُم مَّعِيشَتَهُمْ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَرَفَعْنَا بَعْضَهُمْ فَوْقَ بَعْضٍ دَرَجَاتٍ لِيَتَّخِذَ بَعْضُهُم بَعْضًا سُخْرِيًّا)) د الزحزف سورت آیت (۳۲).

ژباړه: موږ په دغه نړۍ کې د دوی روزي د دوی په منځ کې ویشلې ده او ځنې د دوی مو له ځینو نورو څخه په لوړو مرتبــو پورته کړل. څو ځینې د دوی ځینې نور تابعان کار کوونکي.

مالکیت په اسلام کې محترم ګڼل شوی او د هر وګړي طبیعي حق دی. د روزۍ او خوراکې توپیر چې د کار او استعداد پــه بنسټ منځ ته راځي، دا طبیعي او کسبي خبره ده، نو څوک د هغه د ضبطولو او مصادره کولو او یا له هغه سره د مبــارزې کولوحق نه لري. په دې شرط چې کوم بل لامل چې په هغه کې داستثمار او زور څخه ناوړه ګټه اخیستل ونه لیــده شــي او همدارنګه ځانګړی ملکیت او شته محترم او د هر انسان طبیعي حق دی، البته چې کله له مشروع لارې څخه هغــه لاس تــه راغلی وي خو که چیرې مالکیت له غیر شرعي او غیر قانوني لارې څخه لاس ته راغلی وي او په هغه کې اسلامي شرطونه نه وي رعایت شوي، نو هغه ملکیت د ارزښت وړ نه دی، نو هر ډول کړه وړه چې نورو ته زیان رسوي او یا د ټولنې وګړو تــه مادي او اخلاقي زیانونه رامنځ ته کوي، هغه له شرعې له لارې حرام دي او مرتکب یې پرې نیول کېږي، نو ټول الکــولي او نشه یي توکي، فحشا او بې حیایي، قمار وهل، سود خوړل، اهتکار، زیان راوړونکي معاملات او په لنډه توګه هر هغه عمــل چې په هغه کې یعني هم د ځان په تاوان وي او هم نورو ته تاوان ولري، د شریعت له مخې حرام دي او مرتکب یې په هــېڅ ډول له قانوني څخه د ځان ژغورنې حق نه لري او نه یې ملکیت داحترام وړ ګڼل کېږي.

لنډه دا چې ا سلامي اقتصادي نظام نه بې قید او بې بندوباره پانګه واله خوا لري او نه  د سوسیالیستی دیکتاتوری زور او ظلم، بلکې دا یوه طبیعي او فطري لاره ده چې د هېڅ وګړي حق نه ضایع کوي او د عامه مصلحت په نظر کې نیولو سره اسلام د هروګړي په حق اعتراف کوي.

د تدریس لارې: پوښتنه او ځواب، تشریحي، توضیحي او ګروپي

| وخت | فعالیتونه |
| --- | --- |
| ۵ دقیقې | ښوونکی له سلام او روغبړ څخه وروسته د فقهې د نوي سرلیک په هکله زده کوونکو ته په زړه پورې معلومات ورکوي او ورته وایي چې اسلام د ژوندانه تګ لاره ده او بیا زده کوونکو ته لارښوونه کوي، چې لوست په پټه خوله له خپلو ځانونو سره مطالعه کړي او ستونزمن ځایونه په نښه کړي، وروسته ښوونکی لوست د زده کوونکو له سوبې سره سم تشریح کوي او د زده کوونکو  پوښتنو ته ځوابونه وایي، وروسته بیا د نوي لوست یو یو سرلیک په زده کوونکو شرح کوي. وروسته زده کوونکي په مناسبو ډلو وېشي او کمزوري زده کوونکي له لایقو زده کوونکو سره په یوه ډله کې تنظیموي او د ډلو مشران ورته ټاکي، چې د نوي لوست په هکله په خپلو کې بحث او څېړنه وکړي او بیا یې پایله ټولګیوالو ته بیانوي او ښوونکی ورسره مرسته کوي.<br>**د لوست لنډیز:**<br>هر مسلمان باور او عقیده لري چې الله جل جلاله زموږ پیدا کوونکی او پالونکی او حقیقي مالک دی او د بشر د لارښوونې لپاره یې پیغمبران رالیږلي او حضرت محمد ﷺ وروستنی پیغمبر دی او ده موږ ته بشپړ او کامل دین بیان کړی دی، یعنې لکه څنګه چې یې عبادتونو او ادبونه تشریح کړي دي د ژوندانه هر اړخ یې هم تشریح کړی دی. د مثال په توګه کورنی ژوند، سیاست، اقتصاد، امنیت، ښوونه او روزنه او د ژوندانه نورې اړتیاوې یې په ځانګړې توګه بیان کړې دي. الله په هر څه کامل علم لري او ټول قوانین یې له هر زیان او کمي څخه پاک دي.<br>**ارزونه:**<br>۱ــ د اسلام د اقتصادي نظام په هکله خپل نظریات ووایئ؟<br>۲ــ د اسلام مقدس او سپېڅلی دین ((د ژوندانه په هر اړخ کې بشپړ احکام لري)) دا عبارت شرح کړئ.<br>۳ــ د اسلام، سوسیالیستی او پانګوالی ترمنځ د اقتصاد په هکله توپیر بیان کړئ؟<br>کورنۍ دنده:<br>ښوونکی زده کوونکو ته د درسي کتاب له مخې کورنۍ دنده سپاري. |

لوست: شپږ ویشتم

## سرلیک: د اسلام اقتصادي نظام

**مخ: ۹۱**

**وخت:** دوه درسي ساعتونه

**موخې:** زده کوونکي باید:

۱_ د اسلام اقتصادي نظام وپېژني.

۲_ د نړۍ د نظامي نظامونو سره آشنایي تر لاسه کړي.

۳_ د کاپیتالېزم او سوسیالېزم عنصرونه او ځانګړتیاوې وپېژني او نورو ته يې بیان کړای شي.

۴_ د اسلام له نظره د کار په ارزښت وپوهېږي.

۵_ د اسلام په اقتصادي نظام کې د زکات د رول په هکله بشپړ معلومات ترلاسه کړي.

**لازمي پوهه:**

**کار د اسلام له نظره:**

د اسلام په سپېڅلي دین کې کار او انساني هلې ځلې او د الله ﷻ په وړاندې خپله دنده ترسره کول د عبادت حکم لري، نو د کار کوونکي هلې ځلې سپېڅلې او ارزښتناکې دي، لکه څنګه چې پیغمبر ﷺ فرمایلي دي: ((هېڅوک نه شي کولای چې د خپل لاس له مزدورۍ څخه پاکیزه خوراک لاس ته راوړي.))

په دې هکله حضرت داؤد علیه السلام سره له دې چې پیغمبر و بیا يې هم د خپل تندې په خولې کولو سره ژوند تېراوه او په ډېره غوره بېلګه ورځنې یادونه شوېده.

رسول الله ﷺ بیا مهرباني کوي فرمایي: کوم سړی چې د خپلو اولادونو د نفقې پیدا کولو یا د خپل مور او پلار د اړتیاوو د پوره کولو او یا د خپل ځان لپاره د روزۍ د ګټلو په خاطر له کوره ووځي، څو چې کور ته راستون شوی نه وي د الله په لاره کې ګڼل کېږي او همدارنګه نبي کریم ﷺ زېری ورکوي هغو کسانو ته چې د دې لپاره کار کوي، څو مور او پلار او اولادونه يې نورو ته محتاج نه شي او د دروېزې لاس چا ته اوږد نه کړي، په هر قدم کې د عبادت ثواب لاس ته راوړي.

یوه ورځ رسول الله ﷺ د حضرت معاذ رضي الله عنه سره د مصافحې په ترځ کې وفرمایل: ای معاذه! خپل لاسونه دې ترلي دي، هغه ځواب ورکړ بلې، ای د الله رسوله! کلنګ وهم او د خپلې کورنۍ نفقه حاصلوم ....

رسول الله ﷺ حضرت معاذ مچو کوي او فرمایي: دا لاسونه د دوزخ اور نه سوځوي.

| وخت | فعالیتونه |
| --- | --- |
| | ښوونکی له سلام او حال پوښتنې څخه وروسته تېر شوی لوست ارزوي، مثلاً:<br>۱ــ څوک ویلای شي چې په اوسنۍ نړۍ کې څو اقتصادي نظامونه شتون لري، نومونه یې واخلئ؟<br>۲ــ په درې ګونو اقتصادي نظامونو کې کوم نظام د بشریت لپاره ګټور تمامیږي او ولې؟<br>ښوونکی له ځوابونو اورېدلو وروسته د نوي لوست سرلیک (د اسلامي اقتصاد ځانګړتیاوې) په تخته لیکــي او زده کوونکو ته ښوونه کوي څو لوست په پټه خوله له ځانونو سره ولولي. بیا نوی لوست ورته شرح کــوي او بیا زده کوونکو ته دنده سپاري، چې ((کی لایکون دولة بین الاغنیاء)) بیان کړئ.<br>**د لوست لنډیز:**<br>سرمایه داري او سوسیالیستي نظامونه دواړه ناکام دي، ځکه په سرمایه دارۍ کــې ټولــه پانګــه او ســرمایه د محدودو څو بډایانو لاس ته ورځي او لوی سرمایه داران واړه سرمایه داران له پښو غورځوي او غریبــان پکــې غریبان کېږي او په سوسیالیستۍ کې خو هر چا ته د کار او زحمت په اندول مزد ورکول کېږي، نو که یو نفــر په کور کې ډېر اولادونه ولري، نو د ده مزد د ټولو لپاره نشي کافي کېدای. په ځانګړې توه که څوک ناروغ یا معیوب وي، نو هغه به څه کوي؟<br>اما اسلام د ملت ټول اړخونه او ټولې اړتیاوې په نظر کې نیولې او تر ټولو دمخه یې دېته توجه او پاملرنه کــړې ده، چې باید مال او حلالې لارې څخه لاس ته راوړي او په حلاله لاره یې مصرف کړي او د غریبانو او بېوزلــو لپاره یې په اسلام کې زکات، عشر، صدقات او نور... په بډایانو لازم کړي، څو د غریبانو او بېوزلو چاره وشي او د دوی ترمنځ مینه او محبت هم رامنځ ته شي.<br>**ارزونه:**<br>ښوونکی دې له درسي کتاب څخه د پوښتنو په کولو سره زده کوونکي وارزوي.<br>**کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکي دې زموږ د هېواد د اقتصادي نرام په هکله یوه لنډه مقاله ولیکي. |

**لوست: اووه ویشتم او اته ویشتم**

## سرلیک: د اسلامي اقتصاد ځانګړتیاوې

**مخ: ۹۳-۹۶**

**وخت:** دوه درسي ساعتونه

**موخې:** زده کوونکي باید:

۱ـ د اسلامي اقتصاد ځانګړتیاوې وپېژني.

۲ـ وپوهېږي چې کوم ډول اقتصادي نظام کامیاب کوم ډول ناکام ګڼل کېږي.

۳ـ د لوست ګټې نورو ته بیان کړای شي.

**د فعالیت حل:**

لاندې آیاتونه د اسلام اقتصادی نظام اساسات بیانوي:

(كَيْ لَا يَكُونَ دُولَةً بَيْنَ الْأَغْنِيَاءِ مِنكُمْ...) د الحشر سورت آیت (۷).

یعنې دا د مالونو مصرفول او لګښت یې څکه شرح کړ، څو یتیمان، محتاجان او عامه بېوزلی مسلمانان د تل لپاره د مرستې مورد واقع شي. د اسلامي ټولنې عمومي ضرورتونه پوره شي او همدارنګه دا مالونه یوازې د پانګوالو او شتمنو خلکو په لاسونو زیرمه نشي، څکه په دې کار سره د پانګوالو پانګه لازیاتېږي او غریبان له لوږې او هلاکت سره مخامخ کېږي او ټولې ورې سرمایې او پانګې له منځه ځي.

(وَمَا آتَاكُمُ الرَّسُولُ فَخُذُوهُ وَمَا نَهَاكُمْ عَنْهُ فَانتَهُوا...) د الحشر سورت آیت (۷).

ژباړه: پیغمبرﷺ چې څه تاسو ته درکوي، نو هغه واخلئ او له څه شي څخه چې تاسو بندوي له هغو منع شئ.

یعنې مال او نور څیزونه چې پیغمبرﷺ د الله په حکم تقسیموي هغه په رضا او مینه قبول کړئ څه چې درکوي هغه واخلئ او له څه شي څخه چې مومنع کوي د هغه نه لاس په سر شئ او په دې توګه د هغه د ټولو حکمونو، امرونو او نواهیو پابندي وکړئ.

که څه دا دوه کرښلارې او قوانینه د فی (غنیمت) او د هغه د وېش په باره کې ذکر شوي، خو دا دوه کرښلارې د دې موضوع له پولو څخه ډېر پورته قدم ایږدي او د اسلام د ټولنیز نظام لوړو پوړیو ته رسېږي.

په ټولنه کې اقتصادي نظام ته تر ټولو قوانینو مخکې او زیاته اړتیا لیده کېږي، په دې کتنه کې فردي ملکیت په رسمیت پېژندل شوی او په هغه یې اعتراف کړی دی او په هره ټولنه کې چې مالونه د پانګوالو په لاسونو کې سره تبادله شي، نو هغه وضع او حالات د اسلامي اقتصاد سره مخالفت نبیي، نو باید په ټولنه کې ټولې اړیکې او معاملې داسې تنظیم شي، څو داسې وضع رامنځ ته نشي چې په هغه کې مالونه ټول د څو پانګوالو په لاسونو کې ولوېږي او بېوزلان او مسکینان ورځنې محروم شي.

اسلام عملاً خپل نظام او کرښلاره په دې قانون پورې تړلې ده. اسلام زکات واجب کړی دی د اصل پانګې او نغدې شتمنیو په سلو کې دوه نیم (۲،۵) فیصده او په نورو حاصلاتو او غلو دانو کې لس (۱۰) فیصده او یا پنځه (۵) فیصده زکات ټاکلی دی. په څارویو کې یې هم زکات فرض کړی دی او په غنیمتونو کې د مجاهدینو لپاره څلور پر پنځه ($\frac{4}{5}$) برخه ټاکلې ده. برابره ده چې مجاهد غني وي یا فقیر.

همدارنګه اسلام د ځمکې په کرلو کې هم ځانګړی قانون لري چې دهقان او بزګر د ځمکې د خاوند سره په ځمکه کې شریکوي او همدارنګه اسلام د مسلمانانو مشر ته دا حق ورکړی چې د پانګوالو او شتمنوله مالونو څخه مالیه واخلي او هغه بېوزلانو او فقیرانو ته ورکړي او آن تر دې د مسلمانانو مشر ته حق ورکوي چې د بودیجې د کمبود او د بیت المال د خالي والي په صورت کې د پانګوالو په مالونو کې تصرف وکړي او یو څه ورځنې واخلي. یا پر دوی څه دنده وټاکي.

اسلام احتکار او سود حرام کړی، ځکه دا هم د دې سبب کېږي چې مالونه د پانګوالو په لاسونو کې سره مبادله شي او له دې څېړنې څخه دا نتیجه اخلو چې پانګوال نظام د قرآن په همدې نیم آیت مردود ګڼل شوی، ځکه په پانګوال نظـام کـې وړې سرمایې او پانګې له منځه ځي او ټول پانګه او شته د څو محدودو کسانو لاس ته ورځي او د دوی د چرچو او عیشونو زمینه برابروي.

لنډه دا چې اسلامي نظام هغه کړنلاره ده چې فردي او شخصي مالکیت آزاد او مباح ګڼي او د الله ﷻ له لوري راغلـې دی او څه شي چې د الله ﷻ له لوري سرچینه اخیستې وي هغه حتماً د بندګانو په ګټه تمامېږي.

**د فعالیت شرح او څېړنه:**

**مال څه دی؟**

مال طبیعتاً د ملکیت محل دی او د انساني ژوندانه لپاره یو ضروري او بنسټیز عنصر ګڼل کېږي چې پـه غالبـه توګـه د معاملاتو، لکه د بیعې، اجارې، وصیت او داسې نورو ځای نیسي.

مال په لغت کې هغه شی دی چې په لاس راوړل کېږي یا هغه شی دی چې د چا په ملکیت کـې اوسـېږي او د مبـادلې ارزښت لري او یا دا چې انسان له هغه څخه ګټه اخیستلای شي او د تملیک وړ وي. او هر هغه شی چې د انسان په تـصرف کې نه وي هغه مال نه ګڼل کېږي، لکه مرغه په هوا کې، ماهي په اوبو کې او داسې نور...

د مال په هکله فقهاء دوه نظریې لري:

۱ـ د امام ابوحنیفه رحمة الله علیه له نظره هر هغه شی چې دهغه تصرف او ساتنه ممکنه او په عادي توګه له هغه څخه ګټـه اخیستل کېږي، مال دی.

د امام ابو حنیفه رحمة الله علیه له نظره مال دوه عنصرونه لري:

۱ـ د هغه د تصرف او ساتنې امکان: نو هر هغه چې په تصرف او ساتنه کې رانشی اوتصرف یې ممکن نه وي، هغه مال نـه دی، لکه: علم، روغتیا، شرف، هوا او داسې نور...

۲ـ ګټه اخیستل له هغه څخه ممکنه وي: نو هر هغه شی چې ګټه ورځنې ممکنه نه وي، هغه مال نه دی، لکه: د مـردارې غوښه، فاسد شوی خوراک او یا دا چې په دوديزه توګه د هغه څخه د لازمې استفادې امکان نه وي، لکه یوه دانـه وریجـه مال نه ګڼل کېږي، ځکه په تنهایي له هغې څخه ګټه نشي اخیستل کېدای. همدارنګه د یوه حرام شي څخه ګټـه اخیـستل د مخمصې په حالت کې د مال حکم نشي رامنځته کولای، ځکه د مخمصې حالت یو استثنایي حالت دی.

۳ـ د جمهورو فقهاؤ و نظر: هر شی چې د قیمت خاوند وي او هلاک کوونکی یې ضامن ګڼل کېږي، هغه مال دی.

د احنافو د تعریف څخه داسې معلومېږي چې مادي څیزونه او اعیان چې د خارجي وجود لرونکي وي مال حـسابېږي امـا ګټې او حقوق مال نه دی. یوازېې ملکیت دی، ځکه تصرف ورباندې ممکن نه دی، لکه د لمـر روښـنایي او تـودوالی، د کورونوهستوګنه، سپرلی په موټرونو کې او داسې نور...

آیا مال پلیت اود غورځېدلو شی دی؟

ممکنه ده څوک داسې وګڼي چې اسلام په بنسټیزه توګه مال یو پلیت او لرې غورځېدلی شی ګڼي، نو کوم شی چې پلیـت او د غورځولو وړ وي، هغه باید څه اصول او مقررات هم ونه لري، نو باید هغه لاس ته رانه وړو، په هغه لاس ونه وهو، هغـه لاس په لاس نکړو، هغه په مصرف ونه رسوو، لکه چې د شرابو په هکله راغلي دي ((لعن الله بایعها و مشتریها و آکل ثمنها و ساقیها و شاربها...)) یعنې الله تعالی د شرابو په خرڅوونکي، اخیستونکي، جوړونکي، شراب ورکوونکي او شراب څـښونکي باندې لعنت ویلی دی. داسې مفکوره یوه لویه اشتباه ده چې په اسلام کې مال او پانګه سپک ګڼل شوي دي، بلکې مـال او

پانگه يې تائيد کړې او هغو ته يې شرطونه او کړنلارې ټاکلې دي. هېڅکله پانگه او شته د اسلام له نظره لړې غورځېدونکي نه دي، خواسراف او تبذير اود مال ضايع کول په غوڅه توگه حرام دي.

اشتباه له هغه ځايه رامنځ ته شوې ده چې اسلام پانگه او شته داسې اصلي موخه نه گڼي چې د انسان انسانيت ورځنې قربان شي او مادي پانگه اصلي هدف وگرځول شي او په دې هکله يې مبارزه ورسره کړې ده.

په بله وينا اسلام د پيسو لمانځنه او دا چې انسان د پيسو مريى واوسي او د پيسو د ذخيره کولو لپاره شپه او ورځ هلې ځلې وکړي او له هېڅ ډول زيار او کوښښ څخه ځان ونه سپموي بده گڼي، لکه چې الله فرمايي: وَالَّذِينَ يَكْنِزُونَ الذَّهَبَ وَالْفِضَّةَ وَلاَ يُنفِقُونَهَا فِي سَبِيلِ اللّهِ فَبَشِّرْهُم بِعَذَابٍ أَلِيمٍ. د التوبه سورت آيت (۳۴).

ژباړه: هغه کسان چې سره او سپين زر ذخيره کوي او هغه د الله په لاره کې نه لگوي، نو هغوى ته په درد لرونکي عذاب زېرى ورکړئ.

چې د دې حالت نوم حرص دى او اسلام هغه غندي. داسې پيسې غوښتل ذلت او سپکتيا ده او د انساني شخصيت او معنوي شرافت له منځه وړلو دي. له بلې خوا کوم انسان چې پيسې د آبرومندانه ژوندانه د وسيلې په سرليک لاس ته راوړي، ليده کېږي چې پيسې د هغه کلي هدف تابع گڼي چې انسان د هغه لپاره پيداشوى دى، داسې پيسې نه يوازې د ده شخصيت ته ضربه ورکوي، بلکې خپل مقصد ته د رسېدو يوازينى لاره گڼل کېږي.

دا چې الله ﷻ فرمايي: (كَلَّا إِنَّ الْإِنسَانَ لَيَطْغَى (٦) أَن رَّآهُ اسْتَغْنَى (٧)) د العلق سورت آيت (٦ــ٧).

ژباړه: هيڅکله داسې نده د انسان هرومرو سر کشي کوي. يعنې انسانان نافرماني کوي هر کله چې ځان بې احتياجه گڼي.

دغه آيت د انساني شخصيت په فاسدولو کې د پيسو رول بيان کړى او په څرگنده توگه بيانوي چې مال او شته په خپل ذات کې د سرغړونې لاملونه نه دي، بلکې د سرغړونې لامل دا دى چې انسان له نورو او کله د الله ﷻ څخه هم ځان بې احتياجه احساسوي.

همدارنگه الله فرمايي: ((زُيِّنَ لِلنَّاسِ حُبُّ الشَّهَوَاتِ مِنَ النِّسَآءِ وَالْبَنِينَ وَالْقَنَاطِيرِ الْمُقَنطَرَةِ مِنَ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ وَالْخَيْلِ)) (ال عمران/۱۴)

ژباړه: د خلکو لپاره په زړه پورې (ځيزونه لکه) ښځې او اولاد او د سرو او سپينو زرو ډېرى شوې زيرمې کره آسونه... ښايسته کړى شوي دي.

له بله لوري نوي مکتبونه لکه پانگوالي او مارکستي چې د ژوندانه بنسټ اقتصاد گڼي او د مال او پانگې څخه يې د فرد او ټولنې لپاره معبود جوړ کړى او خلک د هغه عبادت ته هڅوي. اما اسلام مال او پانگې ته نه په تفريطي او منفي نظر سره گوري او نه ورته په افراطي او ډېر مثبت نظر، بلکې وايي:

الف: اسلام مال او پانگه د ژوندانه بنسټيزه بنه گڼي. له همدې کبله الله تعالى فرمايي: ((وَلاَ تُؤْتُواْ السُّفَهَاء أَمْوَالَكُمُ الَّتِي جَعَلَ اللّهُ لَكُمْ قِيَاما)) يعنې مال او شته چې ستاسو د ژوندانه بنسټ پرې ولاړ دى ناپوهانو ته مه ورکوئ.

ب: د قرآن کريم په ډېرو آيتونو کې مال د خير او ښېگڼې په سرليک ياد شوى دى، د مثال په توگه: ((وَإِنَّهُ لِحُبِّ الْخَيْرِ لَشَدِيدٌ)) او په رښتيا سره هغه مال ډېر خوښوي. ((قُلْ مَا أَنفَقْتُم مِّنْ خَيْرٍ فَلِلْوَالِدَيْنِ وَالأَقْرَبِينَ)) ووايه هغه څه چې له ماله لگوئ (لومړيتوب) مور او پلار او خپلوانو ته ورکړئ.

((كُتِبَ عَلَيْكُمْ إِذَا حَضَرَ أَحَدَكُمُ الْمَوْتُ إِن تَرَكَ خَيْرًا الْوَصِيَّةُ)) يعنې هر کله چې يو د تاسو ته مرگ ورسېږي، نو که مال مو پرېښې وي، وصيت درباندې واجب دى.

په ذکر شوو آیتونو کې مال ته د ((خیر)) کلمه استعمال شوې ده. او مال او شته او بې احتیاجي یې نعمت ګڼلــی چــې الله تعالی یې پر پیغمبرﷺ او مؤمنانو د احسان په توګه یادوي او فرمایي: ((وَوَجَدَكَ عَائِلًا فَأَغْنَى)) یعنې ته یې بېوزلی ومونــدې او بې نیازه یې کړې.

ج: رسول اللهﷺ خپله نظریه په لنډو او شاملو جملو سره داسې بیان کړې ده: پاک او حلال مال او شته د نیک او صــالح انسان لپاره ډېر خوښ دي. (رواه احمد)

مال او شته نشو کولای چې په خپل ذات کې مطلق خیر او مطلق شر وګڼو، بلکې مال او شته د اسلحې او وسیلې په څېــر دي چې که چېرې د نیکو انسانانو لاس ته ورشي، نو ښه او ګټور شی دی او که په واجبه اړتیاوو، لکه حج، جهاد، زکات، د ځمکې په آبادۍ او نورو ښو کارونو کې استعمال شي، نو د ژوند تر ټولو مهمه او بنسټیزه وسیله ده.

لکه څنګه چې مخکې ورته اشاره وشوه اسلام یوازې د دې غوښتونکی نه دی چې مال او پانګه د معبود په ښه د انسان لپاره وځلېږي او د الله د بندګۍ نه د مانع کېدو لامل وګرځي او انسان باید داسې د مال او پانګې عاشق ونه اوسېږي چې مــال او پانګه د دې په ځای چې وسیله وګڼل شي خپل وروستنی مقصود او هدف وګرځول شي، څو د اللهﷻ په وړاندې ســرغړونه او بغاوت رامنځ ته کړي، دا هماغه خبرتیا ده چې اسلام انسان ته وړاندې کړې څو د دنیا لمانځنې په ګرداب لاهو نشي.

اللهﷻ فرمایي: ((يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لاَ تُلْهِكُمْ أَمْوَالُكُمْ وَلاَ أَوْلاَدُكُمْ عَن ذِكْرِ اللَّهِ وَمَن يَفْعَلْ ذَلِكَ فَأُوْلَئِكَ هُمُ الْخَاسِرُونَ)) (المنافقون/٩)

ژباړه: ای مؤمنانو ستاسې شتمني او ستاسې اولاد باید تاسې د اللهﷻ له یاده غافل نکړي او هرڅوک چې دا کــار وکــړي همدوی زیانکاران دي.

د_ اسلام تولید، پانګې، کرنې، صنعت او نورو ته توصیه کوي.

هــ_ د مالونو د غلا، خیانت او غصب لپاره شدید قضایي قوانین وضع شوي دي.

و_ د مال څخه دفاع د جهاد حکم لري او په دې لاره کې مړه ته شهید ویل کېږي.

ز_ د فردي اړتیاوو په حدودو کې د مال لګول له هر ډول اسراف څخه باید خالي وي.

د مال سره مینه او علاقه او په هغه کې تصرف او لاس ته راوړنه داسې شی دی چې د بشر په فطرت کې شتون لري، ځکــه الله تعالی د انسان په هکله فرمایي: ((وَإِنَّهُ لِحُبِّ الْخَيْرِ لَشَدِيدٌ)) (العادیات/٨)

ژباړه: او هغه د مال او شتو سره ډېره سخته علاقه لري. او بل ځای فرمایي: ((وَتُحِبُّونَ الْمَالَ حُبًّا جَمًّا)) (الفجر/٢٠)

یعنې مال او شتو سره ډېره مینه لري.

نو که یو مسلمان غواړي چې دین او دنیا او آخرت یې روغ او سالم پاتې شي باید د الله او رسول په حکم راضي واوســي، حلالو ته حلال او حرامو ته حرام ووایي او د الله له یولو تیری ونکړي، څو یو پاک او سپېڅلی ژوند ولري، الله یې کورنۍ او اولادونه وساتي او مالونه یې ورته د جاري صدقې په توګه وګرځوي او په داسې حالت کې د الله سره مخ شــي چــې هغــه ورځنې خوشحال وي.

الله تعالی په قرآن کریم کې د متوفي په میراث کې د مستحقینو برخې په داسې توګه ټاکلې دي چې بېلګه یې په هېڅ قــانون کې نه لیده کېږي او واقعي عدالت پکې مراعات شوی دی.

د اسلام نه مخکې ځینو خلکو د میراث په هکله ځانونه مطلق العنان ګڼل د خپلې خوښې سره سم یې میراث تقسیم کــاوه، ځینو د متوفي اصول (پلار او نیکه) د متوفي په فرع (اولاد) کې د میراث مستحق نه ګڼل او نه یې ښځه د مړه په مال کې د میراث وړ بلله، ځینو د کورنۍ مشر د میراث مستحق ګڼلو او ځینو به لویو زامنو ته د وړوکو زامنو په پرتله دوه چنده حــصه ورکوله او ځینو به د خپلوانو په منځ کې فرق نه کاوه، ټولو خپلوانو ته به یې مساوي برخه ورکوله چې دا څرګنده ظلم دی.

نو اسلامي شریعت د دې لپاره چې عدالت پلی شي د ورثې ترمنځ د جنګ او جګړې او اختلافونو لمن ټوله شي، هر یوه تـه یې په میراث کې برخه ټاکلې ده، آن تر دې چې مؤرث ته یې دا حق نه دی ورکړی چې د خپل مال تر دریمې برخې زیـات چا ته ورکړي او یا وصیت ورته وکړي.

همدرانګه اسلامي شریعت ښځې او میرہ ته هم په میراث کې برخه ټاکلې ده حال دا چې ښځې د اسلام نه مخکې د میراث وړلو حق نه درلود، بلکې د دې سره به د مال او متاع په څیر معامله کېدله، په میراث بـه وړل کېـده او پـه نکـاح بـه مجبورېدله، بلکې مطلقاً د ملکیت حق یې نه درلود او که به کله د څه شي مالکه کیده په هغه کې یې هم دخپـل میـړه لـه اجازې پرته تصرف نشوای کولای، همدا اسلامي شریعت دی چې ټولې بې عدالتۍ یې له منځه یوړې او ټولو ته یې د ملکیت حق ورکړ.

| فعالیتونه | وخت |
|---|---|
| ښوونکی له مخکنیو مقدماتو څخه وروسته د څو پوښتنو په مطرح کولو تېر شوی لوست ارزوي، د بېلګـې پـه توګه:<br>۱ـ څوک د اسلام اقتصادي نرام تعریفولای شي؟<br>۲ـ څوک د کاپیتالېزم غوره ځانګړتیاوې بیانولی شي؟<br>شوونکی د ځوابونو له اورېدلو وروسته د اسلام د اقتصادي نرام په هکله لنډ معلومات ورکوي او د نوي لوسـت سرلیک په تخته لیکي.<br>بیا زده کوونکو ته ښودنه کوي، چې لوست په چوپه خوله ولولي او مهمې موضوع ګانې یې له ځان سره په نـښه کړي.<br>بیا ښوونکی د لوست څنګیز سرلیکونه په تخته لیکي او زده کوونکو ته یې تشریح کوي.<br>**د لوست لنډیز:**<br>د اسلام اقتصادي په هکله قرآن او سنتو او اسلام پوهو شخصیتونو خپل نظریات وړاندې کړي او پـه ځـانګړې توګه د مال د لاس ته راوړلو او د هغه د لګولو په هکله یې خلکو ته اوږده بیانونه کړي دي.<br>په اوسنۍ نړۍ کې د اسلام په اقتصادي نظام سربېره دوه نور اقتصادي نظامونه هم شتون او پیروان لري، چې یـو کاپیتالېزم او بل سوسیالېزم دی.<br>کاپیتالیزم د غربۍ نړۍ د اقتصاد غوره برخه تشکیلوي او د اقتصاد په هکله یې خلکو ته زیـاتې آزادۍ ورکـړې دي، آن تر دې چې سود او قمار ته یې هم جواز ورکړی دی.<br>سوسیالیزم: دا نظام له خلکو څخه د آزاد کار حق سلبوي او د تولید وسیلې تر دولت پورې اړوند بولي او هر چا ته د کار په اندازه مزد ټاکي.<br>**ارزونه:**<br>د کتاب له ارزونو څخه دې زده کوونکي وارزول شي.<br>**کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکي دې د اقتصادي نظام په هکله درې قرآني لارښوونې په خپلو کتابچو کې ولیکي. | |

**لوست: نهه ويشتم او ديرشم**

## سرليک: د ميراث په هکله قراني لارښوونې

**مخ: ۹۷-۱۰۱**

**وخت:** دوه درسي ساعتونه

**موخې:**

دزده کوونکي باید:

۱ــ د ميراث په هکله قرآني لارښوونې وپېژني.

۲ــ وپوهېږي چې په قرآن کريم کې د ښځې لپاره څو ډوله د ميراث حق ذکر شوی دی.

۳ــ د هغو کسانو حقوق چې په مبارک آيت کې ذکر شوي دي هغه وپېژني او آيت حفظ کړای شي.

**د فعاليت حل:**

ذکر شوی آيت ولولئ او لاندې صورتونه ورځنې راوباسئ:

۱ــ د ښځې د ميراث حق او شرطونه:

ښځې دوه حقه لري: ربع او ثمن يعنې څلورمه او اتمه

| فرض (برخه) | مستحق | د استحقاق شرطونه | د استحقاق دليل |
|---|---|---|---|
| څلورمه ۱/۴ | زوجه (ښځه) | مړی اولاد ونلري | وَلَهُنَّ الرُّبُعُ مِمَّا تَرَكْتُمْ إِن لَّمْ يَكُن لَّكُمْ وَلَدٌ |
| اتمه ۱/۸ | ښځه يا ښځې | مړی اولاد ولري | فَإِن كَانَ لَكُمْ وَلَدٌ فَلَهُنَّ الثُّمُنُ مِمَّا تَرَكْتُم |

**۲ــ د مېړه د ميراث حق او شرطونه: ۱/۸، ۲/۳، ۱/۳، ۱/۶**

| فرض (برخه) | مستحق | د استحقاق شرطونه | د استحقاق دليل |
|---|---|---|---|
| نيمه ۱/۲ | مېړه | مړی اولاد نلري | وَلَكُمْ نِصْفُ مَا تَرَكَ أَزْوَاجُكُمْ إِن لَّمْ يَكُــن لَّهُنَّ وَلَدٌ |
| څلورمه ۱/۴ | مېړه | مړی اولاد لري | فَإِن كَانَ لَهُنَّ وَلَدٌ فَلَكُمُ الرُّبُعُ مِمَّا تَرَكْنَ |

| وخت | د ښوونکي فعالیت |
|---|---|
| ۵دقیقې | ښوونکی د مقدماتي موضوع ګانو په وړاندې کولو د تېر شوي لوست په هکله څو پوښتنې ارزوي.<br>**۱ــ په اسلامي نظام کې د مال د ارزښت په هکله ابن تیم څه نظریه لري؟**<br>**۲ــ د میراث د تقسیم په هکله چې کوم آیتونه راغلي څوک ورځنې یو آیت ویلای شي؟**<br>**۳ــ ایا د مال خاوند په مرض الموت کې خپل ټول مال چاته ډالۍ کولای شي او که نه؟**<br>**له هغه وروسته د نوي لوست سرلیک ((د میراث په هکله قرآني لارښوونې په لوی خط په تختــه لیکــي او زده کوونکو ته لارښوونه کوي، څو لوست په پټه خوله ولولي. بیا د څو زده کوونکو څخه غواړي څو د لوست آیت تلاوت کړي، بیا نوی لوست ورته شرح کوي او بیا یې په زده کوونکو هم تکراروي.**<br>**بیا زده کوونکي په دریو ګروپونو کې وېشي او دنده ورکوي چې د لوست په آیت کې فکر وکــړي او لانــدې موضوع ګانې ورځنې راوباسي:**<br>**۱ـ د ښځې د میراث حق او شرطونه یې.**<br>**۲ـ د مېړه د میراث حق او شرطونه یې.**<br>**۳ـ د مېړه او ښځې له میراث پرته د نورو د میراث په هکله څه ویل شوي دي.**<br>**بیا د استازیو څخه غواړي څو راایستل شوې موضوع ګانې په غور او فکر سره زده کړي او ځان پرې وپوهوي.**<br>**د لوست لنډیز:**<br>**د لوست لنډیز د درسي کتاب له مخې ولولئ.**<br>**ارزونه:**<br>**ښوونکی د درسي کتاب له ارزونو څخه زده کوونکي ارزوي.**<br>**کورنۍ دنده:** **د لوست آیت باید په صحیح توګه حفظ کړي.** |

**لوست: یو دیرشم**

## سرلیک: د میراث په هکله قراني لارښوونې

**مخ:** ۱۰۲

**وخت:** دوه درسي ساعتونه

**موخې:**

زده کوونکي باید:

۱ـ د هغه مېړه میراث چې (کلالة) اولاد نلري یا د هغې ښځې میراث چې مور او پلار یې وفات شوي وي وپېژني.

۲ـ وپوهېږي چې کله خور یوازې وي، څومره میراث ورلای شي.

۳ـ هغه مبارک آیت چې د دې لوست په هکله راوړی شوی دی حفظ کړي.

**د فعالیت حل:**

۱ـ کلاله څه ته وایي؟

ځواب: کلاله هغه چا ته وایي چې پلار، مور او ژوندی اولاد ونلري (یعنې چې نه اصل ولري نه فرع) او کلاله د الکل څخه مشتق دی د ضعف او ببوزلی په معنا دی، لکه چې ویل کېږي: کل الرجل اذاضعف و ذهبت قوته... د علماؤ په اجماع سره کلاله په هغه مړي اطلاق کېږي چې اولاد او مور او پلار نلري.

۲ـ که خور یوازې وي څومره میراث ورلای شي؟

ځواب: که خور یوازې وي، یعنې مړی زوی، پلار، لمسی، لور، لمسۍ، اعیاني ورور ونه لري، نیم ۱/۲ اخلي.

۳ـ په هغه صورت کې که خویندې له یوې څخه زیاتې وي او ورور ونلري، څومره میراث وړي؟

ځواب: دوه ثلثه ۲/۳ میراث اخلي.

۴ـ که وروڼه او خویندې سره یو ځای شي، نو ورور د خور په پرتله څومره میراث ورلای شي؟ځواب: په دې صورت کې ورور دوه چنده د خور میراث وړي.

**د تدریس لاره:** پوښتنې او ځوابونه، تشریحي او توضیحي

| وخت | فعالیتونه |
|---|---|
| ۵دقیقې | ښاغلی ښوونکی د مقدماتي موضوع ګانو وروسته د څو پوښتنو په طرح کولو سره تېر شوی لوست ارزوي، وروسته ښوونکی د لوست نوی سرلیک چې د میراث په هکله قرآني لارښوونې (۳) دي په لوی خط په تخته لیکي او زده کوونکو ته امر کوي چې لوست یو ځل په چپه چوپتیا سره ولولي.<br>وروسته لوست شرح کوي او بیا یې د څو زده کوونکو په واسطه تکراروي.<br>وروسته زده کوونکي په دریو ډلو وېشي او دنده ورکوي چې د کتاب فعالیت په خپلو کتابچو کې حل کړي او بیا یې د استازیو په واسطه ټولګیوالو ته بیان کړي.<br>وروسته ښاغلی ښوونکی د درسي کتاب له مخې د لوست لنډیز ورته شرح کوي او د دوی د ارزونې لپاره د درسي کتاب په ارزونه یې ارزوي.<br>وروسته په کورنۍ دنده کې ورته امر کوي چې د لوست آیت په مینه او شوق حفظ کړي، ځکه پرته د آیت له حفظ کولو د ورثې برخې نشي معلومېدای. |

لوست: دوه دیرشم

## سرلیک: د میراث د علم مبادي

**وخت:** دوه درسي ساعتونه

**مخ:** ۱۰۴

**موخې:** زده کوونکي باید:

۱_ د میراث د علم تعریف صحیح وپېژني.

۲_ د میراث د علم په ارزښت وپوهېږي او نورو ته یې بیان کړی شي.

۳_ د مړي په متروکه پورې اړوند حقوق وپېژني او د میراث په عملي قضیه کې یې بیان کړی شي.

**لازمي پوهه:**

د میراث لفظ په لغت کې په دوو معناوو استعمال شوی دی:

۱_ د بقاء په معنا، همدا وجه ده چې یو د الله په نومونو کې وارث دی: ((وانا لنحن نحيي و نميت و نحن الوارثون))

یعنې او پرته له شکه همدا موږ یو چې ژوندي کول کوو او مړه کول کوو او موږ د ټولو وارث یو.

همدارنګه د ((وارث)) کلمه د رسول الله ﷺ په دعا کې داسې راغلې ده: ((اللهم متعنى بسمعي و بصري واجعله الوارث مني))

ژباړه: ای الله ما د خپل غوږ او سترګو نه مستفید وګرځوې او هغوی زما د وفات تر وخته روغ او جوړ باقي وساتې.

۲_ د انتقال په معنا یعنې د یوه شي انتقال (حسي وي یا معنوي) د یوه سړي نه بل سړي ته یا د یوه قوم څخه بل قوم ته ویل کېږي: مال او لویي یې د فلاني څخه په میراث وړې ده.

یو تن چې د میراث په اساس د یوه مال مستحق وي وارث ورته ویل کېږي، مړي او په میراث پورې مستحق مال ته ((مورث)) ویل کېږي. مثلا وایي: که څه هم د مړي لپاره په غالبه توګه مُوَرِّث استعمالېږي.

د میراث کلمه په عربي ژبه کې مصدر دی او فعل یې ((وَرِثَ)) دی، ویل کېږي: ورث فلان اباه ورثاً و وراثة وارثاً و میراثاً، نو د ارث او میراث کلمه په یوه معنا استعمالېږي او د ((ورث)) فعل مصدر دی.

او د اسلامي فقهاؤ په اصطلاح کې د میراث علم د هغو فقهي او حسابي قواعدو څخه عبارت دی چې د هغه په واسطه د مړي په متروکه کې د هر وارث برخه ټاکل کېږي.

**د میراث د علم غوره والی:**

ابن ماجه په خپل سند له ابو هریره ﷺ څخه حدیث نقل کوي چې رسول الله ﷺ فرمایي: د میراث علم زده کړئ او هغه نورو ته هم وښیئ، ځکه د میراث علم نیم علم دی او دا علم ډېر په تېزۍ سره هېرېږي او هغه لومړنی شی دی چې زما د امت څخه به جلا کېږي.

ابو داؤد سنن په خپل سند سره له عبدالله بن عمرو بن عاص ﷺ څخه روایت کړی چې د الله رسول ﷺ فرمایي: علم درې ډوله دی او په هغه زیاتوالی زیاتوالی دی: محکم آیتونه، په ښنو ټینګ سنت او عادلانه میراث.

حاکم له عبدالله بن مسعود ﷺ څخه نقل کوي چې رسول الله ﷺ وفرمایل: قرآن زده کړئ او هغه خلکو ته وښیئ او د میراث علم زده کړئ او خلکو ته یې هم وروښیئ، ځکه زه مرم او علم له امته پورته کېږي او ممکنه ده چې دوه نفره به د میراث په هکله په خپلو کې مختلف وي او څوک به نه مومي چې د هغوی سره مرسته وکړي.

حضرت عمر ﷺ به خلک د میراث علم زده کولو ته هڅول او فرمایل به یې چې د میراث علم زده کړئ، ځکه دا ستاسو د دین یوه برخه ده.

تر ټولو غوره سړی چې د رسول اللهﷺ څخه وروسته یې د میراث په علم کې پوهه او ویاړ ګټلی و، زید بــن ثابــتﷺ و او رسول اللهﷺ په دې ګواهي اداء کوله. احمد او ابن ماجه، ترمذي او نسایي د انسﷺ څخه روایت کوي چې رســول اللهﷺ وفرمایل: تر ټولو مهربانه سړی زما په امت کې ابوبکر او تر ټولو غښتلی عمر او تر ټولو شرمناک او پاک لمنی عثمــان او د حلال او حرام په مسائلو تر ټولو عالم معاذ بن جبل او په قرآنکریم تلاوت کولو کې تر ټولو غوره ابي بن کعب او د میــراث په علم کې تر ټولو پوه او ماهر زیدبن ثابت رضوان الله علیهم دي او هر امت یو امانتدار لري او زما د امت امین ابوعبیده بن جراح دی.

د دې حدیث نه معلومه شوه چې زید بن ثابت د میراث په علم کې تر ټولو صحابهؤو ښه عالم و. د یوولسو کلونو و چــې مدینې منورې ته یې تشریف راوړ او د خندق په غزوه کې یې لومړنی شرکت و او د رسول الله د وحې کاتب هم و. حضرت ابوبکرﷺ ورته د قرآنکریم جمع کولو امر وکړ او ورته ویې ویل چې ته یو پوه او هوښیار ځوان یې او تا ته د وحې د کتابت شرف حاصل دی، نو قرآنکریم جمع کړه. زید ویل په الله قسم که د یوه غره په پورته کولو دې راته امر کړی وای هغــه مــا ته آسانه و د دې کار نه چې ماته دې پرې امر کړی دی.

صحابه کرامو به د زید بن ثابت د علم له کبله ډېر احترام کاوه، آن تر دې روایت شوی چې عبدالله ابن عباسﷺ به د ده د اوښ رکاب ورته نیوه او زیدﷺ به ورته ویل ای د رسول اللهﷺ د کاکا بچیه خوشې یې کړه هغه به ویل موږ د خپلو علمــاؤو او لویانو سره داسې کړه وړه کوو.

د زید بن ثابتﷺ د وفات په ورځ ابن عباسﷺ وفرمایل: نن زموږ له منځ څخه علم سفر وکړ او ډېر علم مو له لاسه ورکړ او ابوهریرهﷺ به ویل: د دې امت جوهر او پانګه له منځه ولاړه او ښایي چې الله تعالی ابن عباسﷺ دده په ځای کېنولی وي او ډېر علما هم په میراث کې زید بن ثابت ته ترجیح ورکوي.

**د میراث د علم فایده:**

د میراث علم د اسلامي فقهې په کتابونو کې د فرایضو په علم سره هم نومول شوی دی، فرایض د فرض جمــع ده او پــه لغت کې په ګڼو معناوو راغلی، لکه تقدیر، تعین، غوڅول، نازلېدل، حلال، بیان او د هغه څه په معنا هم دی چې بې عوضــه ورکول کېږي، لکه دا قول د عربو: ما احبت منه وقرضاً ولاقرضاً یعنې له هغه څخه مې نه د عوض په مقابل کې څه واخیستل او نه د بلاعوض او هره معنا د میراث په علم کې موجودېدای شي، ځکه په میراث کې برخې د الله له لوري نازل شوې او په مفصله توګه بیان شوې دي او د میراث اخیستل ورثې ته حلال دي او پرته له کوم عوضه د خپل مــورث د مــال مــستحق ګرځي.

**د میراث اسباب:**

اسباب د سبب جمع ده او په لغت کې هغه شی دی چې د هغه په واسطه بل ته وصل کېږي او په اصطلاح کې د هغه شي نه عبارت دی چې دهغه له شتون څخه شی موجودېږي او د نه شتون څخه یې شی نه موجودېږي، لکه د لمــر پرېوتــل چــې د ماښام د لمانځه لپاره لامل او د روژه لرونکو لپاره د افطار لامل کېږي، نو د لمر پرېوتل چې د ماښام د لمانځه لپاره لامــل او د روژه لرونکو لپاره د افطار لامل کیږي، نو د لمر پریوتل ددې احکامو د ثبوت سبب دي.

د رجیه په متن کې راغلي دي: د میراث سببونه درې دي چې هر یو له دوی څخه د میــراث خاونــد د میــراث مــستحق ګرځوي، هغه نکاح، ولاء او نسب دي له دې پرته بل سبب د ارث لپاره شتون نه لري.

**قرابت (نسب):**

د وینو قرابت او خپلوي چې د زېږېدو لامل وي د میراث په علم کې په درې ډوله ده:

د فروضو (برخو) خاوندان: د مړي خپلوان دي چې الله تعالی په قرآنکريم يا نبوي سنتو کې ورته برخې ټاکلې دي، لکه پلار، نيکه، مور، نيا، لور، وربره، اعياني خور او پلرنۍ خور او مورنی اولاد.

۲ـ عصبه: (هغه کسان چې صريحاً مقدره برخه نه لري) پلرنۍ کورنۍ ته نږدې لکه زوی، لمسی او يا تر دې ښکته او اعياني ورور او زوی يې، علاتي ورور او زوی يې، اعياني کاکا او زوی يې او پلرنی کاکا او زوی يې.

۳ـ ذوی الارحام: لکه د لور لور، د لور زوی ماما او زوی يې او مور او د مور پلار دا ټول د پلار له طرفه او يا يې د زوی له طرفه د مړي فاميل ګڼل کېږي، نو پورته کسان لکه پلار نيکه او کاکا په واقعيت کې د پلار ورور او د دې په شان دي او ولد والی په زوی يا زامنو کې ډېر ظاهره دی، که هر څومره ښکته وي او په لور او زامنو يې هم اطلاق کېږي او لور د فرضو خاونده ده او زوی يې د ذوی الارحامو جزء دی، ځکه تر بلې کورنۍ پورې اړيکې لري.

هغه دليل چې د خپلوۍ او قرابت په ميراث دلالت کوي دا مبارک آيت دی: ((لِّلرِّجَالِ نَصِيبٌ مِّمَّا تَرَكَ الْوَالِدَانِ وَالأَقْرَبُونَ وَلِلنِّسَاء نَصِيبٌ مِّمَّا تَرَكَ الْوَالِدَانِ وَالأَقْرَبُونَ مِمَّا قَلَّ مِنْهُ أَوْ كَثُرَ نَصِيبًا مَّفْرُوضًا)) (النساء/۷)

ژباړه: د هغه څه نه چې د پلار، مور او خپلوانو ته پاتې کيږي د نارينه وو لپاره برخه ده او (هم) د هغه څه نه چې د پلار مور او خپلوانو څخه پاتې کيږي د ښځو لپاره برخه ده که (شتمني) لږه وي يا زياته ټاکلی برخه ده.

**دويم ـ نکاح:**

هغه صحيح حقيقي يا حکمي نکاح ده چې لاندې شرطونه بايد پکې مراعات شوي وي:

۱ـ هغه ښځه چې په يوه صحيح تړون يې نکاح شوې وي برابره ده چې د مړه شوي مېړه سره يې جماع کړې وي يا نه.

۲ـ طلاقه شوې ښځه چې طلاق يې رجعي وي او د عدت په مهال کې وي.

۳ـ هغه ښځه چې باين طلاق ورکړ شوی وي او د مرض الموت په مهال کې وي او لاندې شرطونه پکې شتون ولري:

الف ـ له طلاق ورکولو څخه يې موخه د ميراث څخه محروموالی وي، د ښځې د غوښتنې په خلاف.، اما چا چې خپله ښځه. د مرض الموت په مهال کې د ښځې د خيانت يا بد چلند چې د زغم وړ نه وي يابې د مرتد والي له وجې طلاقه کړې وي، نو له ده څخه ميراث نه شي وړلای.

او هغه دليل چې د نکاح له لارې د ميراث وړلو په حق کې دلالت کوي دا مبارک آيت دی: ((وَلَكُمْ نِصْفُ مَا تَرَكَ أَزْوَاجُكُمْ إِن لَّمْ يَكُن لَّهُنَّ وَلَدٌ))

ژباړه: او تاسو لره د هغه ترکې نه نيمايي برخه ده کوم چې ستاسو ده ښځو پاتې ده که چيرې د دوی نه اولاد نه وي پاتې شوی.

**دريم ـ ولاء:**

دې ډول ولاء ته د عتق (آزادولو) ولاء وايي، ځکه د مريي په آزادولو پورې اړه لري، نه د قسم تر ولاء پورې او کومه معاهده او ژمنه چې تر هغو غلامانو پورې ځانګړې شوې وي چې بادار يې آزاد کړي وي، نو په پايله کې دا بادار د خپل غلام مال په ميراث وړلای شي که غلام وارث ونه لري چې د ولاء او وفا په معنا يې ټينګار کړی وي، ځکه هغوی يې آزاد کړي او د غلامانو په آزادولو کې په داسې توګه تشويق کوونکی وي چې د دوی حق د هغوی په ميراث کې له منځه ولاړ نشي.

په دې درې ګونو سببونو باندې ټول علماء اتفاق لري او هر کله چې کوم وارث د خپلوۍ يا نکاح يا ولاء په سبب شتون ونلري، بيا يې وارث بيت المال دی او په دې صورت کې بيت المال ته د مال سپارل د مصلحت په اساس دي نه د ميراث، لکه کوم ورک شوی شی چې خاوند ونلري.[1]

لاندې جدول د ميراث سببونه بيانوي:

[1]. په دې هکله چې آيا بيت المال منظم دی يا نه، عادل حاکم پرې ا شراف لري يا نه، په دې هکله د ابن جزي قوانينو ته مراجعه وکړئ.




**د میراث موانع:**

مانع په لغت کې د دوو څیزونو ترمنځ پردې ته ویل کېږي او په اصطلاح کې هغه شی دی چې د شتون په سبب یې د شخص څخه د سبب له قیامه وروسته د حکم انتفاء راځي او د میراث موانع د احنافو په نزد څلور شیان دي: مرئیتوب، وژنه، د دین اختلاف او د ځای (هېواد) اختلاف.

**۱ـ مرئیتوب:** هغه حکمي او اعتباري مانع دی چې د انسان سره لازم شوی او په هغه سره قیام پیدا کوي او د هغه د پیدایښت اصلي لامل کفر دی، نو غلام نه میراث وړای شي او نه له ده څخه میراث وړل کېدای شي. او نه څوک حجب (منع) کولای شي.

او حجب په لغت کې د منع په معنا دی او په اصطلاح کې د یوه وارث منع کول او بندول دي د متروکې له ټول مال یا ځینې مال څخه، د یوه بل ډېر مستحق شخص په واسطه.

**۲ـ وژنه:** هغه وژنه د میراث مانع کېږي چې د قصاص لامل وي، نو چا چې خپل مورث قصداً مړ کړ، نو د ده له مال او دیت څخه میراث نشي وړلای. اما که یې خپل مورث په خطا او سهوې سره مړ کړ، نو په دغه صورت کې دمال نه میراث وړلای شي نه د دیت نه.

**۳ـ د دین اختلاف:** مسلمان له کافر او کافر له مسلمان څخه میراث نشي وړای پرته د ولاء له لارې. هر کله له کافر د ترکې له تقسیم نه مخکې مسلمان شو، نو اسلام ته د ترغیب له وجې میراث ورکول کېږي او کفر ډېر ډولونه لري او د رسول اللهﷺ څخه احادیث روایت شوي چې د دین اختلاف د میراث مانع کېږي.

**۴ـ د ځای (هېواد) اختلاف:** د اوسېدنې د هېواد اختلاف هم د میراث مانع کېدای شي اومطلب یې دا دی چې هغه هېوادونه چې مورث او وارث ورته منسوب دي، د سلطې او قدرت درلودنې له کبله مستقل او خپلواک دوه رئیسان ولري او یو د بل تابع ونه اوسي.

د هېواد اختلاف هغه وخت مانع ګڼل کېږي یعنې د دوو هېوادو پیروان چې یو د بل سره خپلوي ولري یو د بل څخه په لاندې دریو حالتونو کې میراث نشي وړلای:

۱ـ دواړه هېوادونه ځانګړي او خپلواک عسکر د خپلې دفاع او ساتنې لپاره ولري.

۲ـ دواړه هېوادونه ټاکلې جغرافیاوي پولې او د امورو د ادارې لپاره خپلواک رئیسان ولري.

۳ـ دواړه هېوادونه د جنګ په حالت کې وي د يوه هېواد د عسکرو يا پيروانو وژنه بل هېوادته د بين المللي قوانينو سره سم جرم ونه ګڼل شي.

د اسلامي فقهې علماء په دې عقيده دي چې د هېواد اختلاف د مسلمانانو ترمنځ د ميراث مانع نه ګرځي، ځکه اسلامي هېوادونه سره له دې چې حکومتونه يې جلا او سياسي نظامونه يې سره مختلف او يو د بل څخه لرېوالی لري، خو حاکم يې يو دی، مسلمانان که هر ځای او په هر هېواد کې اوسېږي د قرآني آيت: ((إِنَّمَا الْمُؤْمِنُونَ إِخْوَةٌ)) په بنسټ سره وروڼه دي او بل ځای الله ﷻ فرمايي: ((وَالْمُؤْمِنُونَ وَالْمُؤْمِنَاتُ بَعْضُهُمْ أَوْلِيَاء بَعْضٍ)) يعنې مؤمنان او مؤمنانې ځينې د ځينو نورو کار جوړوونکي دي او د رسول الله ﷺ د وينا سره سم: ((اَلْمُسْلِمُ اَخُوالْمُسْلِم)) يعنې مسلمان د مسلمان ورور دی او که کله نا کله د اسلامي هېوادونو ترمنځ ناوړه تفاهم يا څه اختلافات رامنځ ته شي، دا اختلافات موقتي بڼه لري او د اسلام د سپېڅلي دين د اصولو سره سم دوی مکلف دي چې خپل اختلافات له منځه يوسي او د صميميت او محبت په ډکه فضا کې سره ژوند وکړي، نو د اسلامي بنسټونو سره سم مسلمانان د خپلوۍ په صورت کې يو د بل څخه ميراث وړلای شي، هر ځای چې اوسېږي. د احنافو او شوافعو په وړاندې د هېواد اختلاف د کافرانو په هکله د ميراث مانع کېږي، نه د مسلمانانو ترمنځ.

**د تدريس طريقه:** پوښتنې او ځوابونه، انفرادي، توضيحي، تمثيلي

| وخت | فعاليتونه |
|---|---|
| ۵ دقيقې | ښوونکی دمخکينيو موضوعاتو وروسته د تېر شوي لوست په هکله له زده کوونکو څخه پوښتنې کوي، مثلاً:<br>۱ـ د ميراث وړلو لاملونه څوک ويلای شي؟<br>۲ـ د ميراث موانع کوم شيان دي؟ |
| ۲۵ دقيقې | د لوست وړانديز:<br>ښاغلی ښوونکی د ځوابونو له اورېدلو وروسته د نوي لوست سرليک (د ميراث د علم مبادي) په لوی خط په تخته ليکي او زده کوونکو ته دنده سپاري څو لوست په چوپتيا سره ولولي او بيا زده کوونکو ته لوست شرح کوي او زده کوونکي متوجه کوي چې ميراث دوه شرطونه لري: ۱ـ د مورث مړينه ۲ـ د مورث له مرګه وروسته د وارث ژوندون.<br>بيا ښوونکی زده کوونکو ته د متروکې په اړوند معلومات ورکوي او وايي چې په متروکه پورې څلور حقونه اړه لري: ۱ـ د مړي کفن او خښول ۲ـ د مړي د قرضونو اداء کول ۳ـ د مړي وصيت ترسره کول ۴ـ د ورثه د حقوقو اداء کول.<br>وارثان: له ذوی الفروضو، عصبه وو، ذوی الارحامو او موصٰی له دی په ټول مال سره.<br>بيا ښاغلی ښوونکی له يوه زده کوونکي څخه غواړي څو د ميراث ارکان او شرطونه عملاً تمثيل کړي. |
| ۱۰ دقيقې | د لوست لنډيز: د ميراث علم هغه علم دی چې مستحقينو ته د مړي څخه د پاتې مالونو د انتقال او وېش په هکله بحث کوي.<br>د ميراث د علم موضوع: د مړي متروکه مال دی.<br>غرض يې: د مړي له متروکې څخه د مستحقينو د متروکې پېژندل دي، څو هر مستحق خپل حق وپېژني او په نورو ظلم ونکړي او د ميراث علم ته نيم علم ويل شوی دی. |
| ۵ دقيقې | ارزونه: ښوونکی د درسي کتاب له مخې کورنۍ دنده ورکوي. |

**لوست: دری دیرشم**

## سرلیک: ذوی الفروض او برخې یې او د ښځو له ډلې څخه د ذوی الفروضو حالتونه:

**مخ: ۱۰۶**

**وخت:** دوه درسي ساعتونه

**موخې:** زده کوونکي باید:

۱ـ ذوی الفروض وپېژني.

۲ـ د ذوی الفروضو ټاکل شوې برخې زده کړي او په ټولنه کې یې تطبیق کړای شي.

۳ـ د ښځو د ذوی الفروضو حالتونه وپېژني.

۴ـ د نرانو د ذوی الفروضو حالتونه وپېژني.

**لازمي پوهه:**

**د وارثانو حقوق:**

د مړي د تکفین، تجهیز او خښولو او قرضونو له اداء کولو او د ۱/۳ وصیت ترسره کولو وروسته چې څومره مال پاتې شي هغه د وارثانو حق دی او په لاندې توګه بیانېږي:

۱ـ د فروضو (برخو) خاوندان: هغه کسان دي چې الله تعالی د نساء سورت په آیتونو کې ذکر کړی او پیغمبرﷺ هغه په نبوي احادیثو کې ټاکلې دي چې هغه شپږ برخې دي: ۱/۲، ۱/۴، ۱/۸، ۲/۳، ۱/۳، ۱/٦ یا په بله وینا نیم، څلورمه، اتمه، دوه دریمې، دریمه او شپږمه.

۲ـ نسبي عصبې: دا د فروضو له خاوندانو څخه پرته نږدې خپلوان دي او د فروضو له خاوندانو څخه وروسته هر څه چې له ترکې څخه پاتې شي، هغه اخلي او که د برخې خاوند وارث شتون ونلري، بیا ټوله ترکه اخلي.

۳ـ که عصبه شتون ونلري او د برخو خاوندانو ټوله ترکه نه وي اخیستې، نو باقیمانده یې د برخو خاوندانو ته رسېږي، پرته له یو د زوجینو څخه چې دې عمل ته د میراث په علم کې رد وایي.

۴ـ ذوی الارحام: د فروضو له خاوندانو او عصبې نه پرته خپلوان دي، لکه د لور زوی او ماما دوی یوازې هغه وخت میراث وړي چې د فروضو خاوندان او عصبه شتون ونلري یا د فروضو له خاوندانو څخه یوازې یو له زوجینو باقي پاتې وي. همدارنګه که چېرې کومه ښځه مړه شي مېړه او ماما ولري، نو مېړه نیمه ترکه وړي او نیمه نوره ماما ته رسېږي، ځکه د ذوی الارحامو جز دی.

۵ـ زوجینو ته رد کول (د خپلې برخې له حاصلولو وروسته) که چېرې عصبه یا ذوی الارحام ونه لري، د بېلګې په توګه که چېرې یو سړی مړ شي او یوازې ښځه یې وارثه وي، نو ښځه خپله برخه مال اخلي او نور پاتې هم په رد سره اخلي، ځکه عصبه او ذوی الارحام وجود نلري او حکمت پکې دا دی چې شیخ حسب الله وایي: د ذوی الارحامو له میراثه مخکې هېڅ یوه زوجینو ته نه رد کېږي، څو مال پر دوی مقدم شي او د صله رحمۍ د پرې کېدو لامل کېږي. الله تعالی فرمایي: ((وَأُوْلُواْ الأَرْحَامِ بَعْضُهُمْ أَوْلَى بِبَعْضٍ فِي كِتَابِ اللّهِ إِنَّ اللّهَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ)) (الانفال/۷۵)

ژباړه: او د اللهﷻ په کتاب کې د وینې خپلوان یو دبل نه زیات حقدار دی بیشکه اللهﷻ په هرشی پوهیدونکی دی.

۱ـ سببي عصبه: کوم بادار چې خپل غلام آزاد کړي او دا غلام مړ شي او د فروضو خاوند، عصبه او د کورنۍ ورثه ونه لري، نو دا بادار د ده عصبه کېږي او میراث اخیستلی شي. دا د هغو وارثانو حقوق دي چې په میراث پورې تړلي مسبب لري، لکه خپلوي یا نکاح یا ولاء.

کله چې څوک له دې ذکر شوو څخه څوک ونه لري چې میراث ورته ورسېږي، نو ترکه په ترتیب سره له دریو لاندې ډلو څخه یوه ته ورکول کېږي.

الف ـ هغه څوک چې اقرار د ده په نسب سره شوی وي او دا اقرار پر بل حمل شوی وي، مثلاً یو تن چې نسب یې مجهول دی پیدا کوي او نوم یې زید دی او محمد اقرار کوي چې ورور یې دی، محمد په داسې حال کې چې په دې خپل

اقرار ټینګار کوي، مړ کېږي او کوم وارث هم نلري، نو زید د محمد د مالونو او پانګې وارث کېږي او ویل کېږي چې دا داسې اقرار دی چې پر بل بار شوی دی، ځکه کله چې محمد وایي: هغه مې ورور دی، نو ضرورتاً یې هغه خپل پلار ته منسوب کړی او دا اقرار د محمد د پلار په نسبت نافذ او جاري نه دی، یعنې زید د محمد له پلار او ورور او خور او هیڅ شخه میراث نه وړي. او دا اقرار یوازې د محمد په حق کې نافذ او د اجراء وړ دی. که چېرې محمد مړ شي او حقیقي یا حکمي وارث ونه لري، دلته په هغه اقرار چې د خپل ځان په هکله یې کړی د ده سره چلند کېږي، نه د بل په حق کې.

ب_ چا ته چې له دریمې زیات وصیت شوی وي، نو که چېرې بل قبلي وارث شتون ونلري، نو دغه تن چې تر دریمې زیات ورته وصیت شوی کولای شي هغه واخلي.

ج_ هر کله چې هېڅ یو له وارثانو چې مخکې ذکر شول شتون ونلري، نو د مړي مالونه او شته د مسلمانانو بیت المال یا د حکومت عمومي خزانې ته سپارل کېږي او دلیل پرې دا دی چې پیغمبرﷺ فرمایي: زه د هغه وارث یم چې وارث ونلري او دا شخصاً د پیغمبر په معنا نه دی، بلکې د مسلمانانو مصلحت دی.

**د تدریس طریقه:** پوښتنې او ځوابونه، انفرادي، توضیحي، تشریحي، تمثیلي.

| وخت | فعالیتونه |
|---|---|
| ۵دقیقې | ښاغلی ښوونکی د مخکینیو موضوعاتو له وړاندې کولو وروسته تېر شوی لوست په څو پوښتنو ارزوي.<br>بیا وروسته د نوي لوست سرلیک ((ذوی الفروض او د دوی برخې)) په لوی خط په تخته لیکي. بیا زده کوونکو ته لارښوونه کوي څو لوست له خپلو ځانونو سره ولولي.<br>ښوونکی د ذوی الفروضو برخې چې نیمه، څلورمه، اتمه، دوه په دریمه، دریمه او شپږمه ده او همدارنګه د نارینه وو ذوی الرفروضو حالتونه، لکه پلار، نیکه، ورور او مېړه په تخته لیکي او بیا هر یو زده کوونکوته شرح کوي.<br>بیا زده کوونکو ته دنده ورکوي څو د ذوی الفروضو حالتونه او د دوی برخې په خپلو کتابچو کې ولیکي او بیا له څو تنو زده کوونکو څخه غواړي چې د ذوی الفروضو حالتونه او برخې ټولګیوالو ته بیان کړي. |
| | **د لوست لنډیز:**<br>ذوی الفروض هغه کسان دي چې برخې یې په قرآن کریم او نبوي احادیثو کې ټاکل شوې دي چې د اسلام په سپېڅلي شریعت کې شپږ دي:<br>نیمه، څلورمه، اتمه، دوه دریمې، دریمه او شپږمه او د ټاکل شوو برخو مستحقین دولس تنه دي چې څلور د نرانو له ډلې او باقي اته تنه د ښځو نه دي.<br>د نرانو له ډلې ذوی الفروض دا دي:<br>پلار، صحیح نیکه (لوی پلار) وروره‌مور لخوا، مېړه. |
| | **ارزونه:**<br>ښوونکی د خپلې ډاډینې لپاره د درسي کتاب له پوښتنو څخه زده کوونکي ارزوي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکي باید ذوی الفروض او د هغوی برخې زده کړي. |

لوست: څلور دیرشم

## سرلیک: د ښځو له ډلې څخه د ذوی الفروضو حالتونه

**مخ:** ۱۰۹

**وخت:** دوه درسي ساعتونه

**موخې:** زده کوونکي باید:

۱ــ د ښځو له ډلې د ذوی الفروض حالتونه وپېژني.

۲ــ اته ډلې ذوی الفروض یاد کړی شي.

۳ــ د لوست لاس ته راوړنې تطبیق کړای شي.

**د تدریس طریقه:** تشریحي، توضیحي او د پوښتنو ځوابونه

| وخت | فعالیتونه |
|---|---|
| ۵دقیقې | ښاغلی ښوونکی له مخکینیو موضوعاتو څخه وروسته د څو پوښتنو په ترڅ کې تېر شـــوی لوســـت ارزوي او د نوي لوست د سرلیک لپاره زده کوونکو ته انګېزه روکوي او بیا یې په تخته لیکي.<br>زده کوونکي په چوپتیا سره د لوست په لوستلو مشغولوي او دی په خپله بغلي سرلیکونه لیکي، لکه ښځه، لـــور، د زوی لور، اعیاني خور، علاتي خور، مور، نیا (د مور مور) او اخیافي خور.<br>بیا هره یوه شرح کوي او د لوست په مهمو نکتو زیات ترکیز کوي. بیا ښاغلی ښوونکی زده کوونکو ته دنـــده ورکوي څو د ښځینه وو ذوی الفروضو حالتونه او د دوی برخې په خپلو کتابچو کې ولیکي او بیا له څو تنو زده کوونکو څخه غواړي چې ټولګیوالو ته یې بیان کړي.<br>بیا د لوست لنډیز ورته بیانوي او د درسي کتاب له پوښتنو څخه د دوی ارزونه کوي او کورنۍ دنده ورسپاري. |

**لوست: پنځه دیرشم**

## سرلیک: عصبات

**مخ: ۱۱۳**

**وخت:** دوه درسي ساعتونه

**موخې:** زده کوونکي باید:

۱_ عصبه وپېژني.

۲_ د عصبه حقوق وپېژني او نورو ته یې بیان کړای شي.

۳_ د حجب لغوي او اصطلاحي معنا او د هغه اساسي هدف او موخه وپېژني.

**لازمي پوهه:**

د میراث د اسبابو دویم سبب عصوبت دی او ورثه چې په عصوبت سره د میراث مستحق ګرځي د ذوی الفروضو نه وروسته قرار لري.

عصبات د عصبه جمع ده او د عربو د دې وینا څخه چې د احاطې معنا ورکوي اخیستل شوېده چې وایي: عصب القوم بالرجل عصبا، ځکه د یوه نفر نارینه خپلوان چې د ده په واسطه یې مذکر ته منسوب کړي دا نفر یې احاطه کړی او د ضرورت په مهال دفاع ترې کوي او د میراث د علم په اصطلاح کې عصبه هغه چا ته ویل کېږي چې د ذوی الفروضو په نشتوالي کې د ټولې ترکې مستحق ګرځي او د دوی د شتون په حالت کې د دوی نه وروسته د بقیه مال مستحق کېږي.

**عصبه په درې ډوله ده:**

۱_ عصبه بنفسه: هغه څوک دی چې په خپل ذات عصبه واوسي دقرابت په سلسله کې مړی مؤنث نوي او عصبه بنفسه ټول نارینه او په څلور ډوله دي.

_ د مړي فروع: زوی، د زوی زوی او له دې نه ښکته. _ د مړي اصول: پلار، د پلار پلار او یا ترې پورته.

_ د مړه پلار فروع: اعیاني او علاتي ورونه او زامن یې. _ د مړه نیکه فروع: اعیاني او علاتي کاکاګان او زامن یې.

۲_ عصبه بغیره: هغه کس دی چې ذاتاً عصبه نه وي، خو د بل کس په واسطه چې هغه عصبه وي عصبه وګرځي او عبارت دي له لور، د زوی لور، اعیاني خور، علاتي خور چې دا ټول ذوی الفروض دي او په ترتیب سره د زوی، د زوی زوی، اعیاني ورور او علاتي ورور په واسطه چې عصبه دي، عصبه ګرځول کېږي او همدارنګه د زوی لور د زوی د زوی په واسطه عصبه کېدای شي.

۳_ عصبه مع غیره: هر کله چې کوم نفرمؤنث د داسې نفر مؤ نث په واسطه چې په ذات خپل کې عصبه نه وي، عصبه وګرځي هغه د عصبه مع غیره په نامه یادېږي او دا اعیاني خورانو ته شاملېږي، اعیاني او علاتي خوراني اصلاً ذوی الفروض دي اما دواړه د لور او د زوی د لور په واسطه چې عصبه نه دي، ذوی الفروض دي، عصبه ګرځول کېږي. د شرعي قاعدې په اساس چې وایي: (اِجْعَلُوا الاَخَوَاتِ مَعَ الْبَنَاتِ عَصَبَةً) یعنې خوراني د لورانو سره عصبه وګرځوي او دا موضوع د هذیل بن شرجیل په روایت استناد لري.

**حجب:** په لغت کې منع ته وایي، مثلاً ویل کېږي حَجَبَتِ السُّحُبُ الشَّمْسَ کله چې وریځ وپوښي، د حجب اسم فاعل حاجب او اسم مفعول یې محجوب راځي.

حجب د میراث د علماؤو په اصطلاح کې د معین کس منع کول دي، د ټول میراث نه یا د ځینې میراث څخه د بل کس د وجود په سبب. حجب په دوه ډوله دی: ۱_ د نقصان حجب ۲_ د حرمان حجب.

۱_ د نقصان حجب: د وارث انتقال دی د اعلی برخې نه ادنٰی برخې ته د بل کس په موجودیت سره، لکه مېړه چې د مړي د اولاد په موجودیت کې یې برخه له نیم څخه څلورمې ته نقلېږي او هغه ورثه چې د اعلی او ادنٰی برخو لرونکي دي دا دي:

۱ـ مېره د اعلی (۱/۲) برخې لرونکی او د مړي د اولاد په صورت کې د نیم نه څلورمې ته انتقال مومي.
۲ـ ښځه چې د اعلی برخې (۱/۴) لرونکې ده او د مېره د اولاد په شتون کې اتمې (۱/۸) ته انتقال مومي.
۳ـ د زوی لور: د اعلی برخې لرونکې نیم (۱/۲) د یوازوالي په صورت کې او د تعدد په حالت کې دوه ثلثه (۲/۳) اعلی برخه لري، خو د مړي د یوې لور په شتون کې د اعلی برخې نیم یا ثلثان څخه ادنی برخې (۱/٦) ته انتقال مومي.
۴ـ علاتي خور چې د یوازېوالي په وخت کې نیمه (۱/۲) او د تعدد په صورت کې دوه ثلثه (۲/۳) اعلی برخه لري، خو د یوې اعیاني خور د شتون په مهال د اعلی برخې نه ادنی (۱/٦) ته انتقال مومي.
۵ـ مور چې د اعلی برخې دریمې (۱/۳) لرونکې ده، خو د مړي د اولاد په صورت کې یا د دوو خورانو یا د ورور په شتون کې د ثلث نه ادنی برخې (۱/٦) ته انتقال مومي.
دویم د حرمان حجب: د یوه کس منع کول دي له میراث څخه د بل کس په موجودیت سره، لکه نیکه چې د پلار په شتون دمیراث څخه محرومېږي.
ورثه د حرمان د حجب د قبول یا نه قبول له حیثه په دوه ډوله ده:
٦ـ هغه ورثه چې د حرمان حجب نه قبلوي او د حرمان حجب په اساس له میراثه نه محرومېږي، یعنې په ورثه کې د بل کس وجود د دوی د حرمان لامل نه کېږي او دا عبارت ده له: پلار، مور، مېره، ښځه، لور او زوی. دا شپږ تنه مړي ته پرته له واسطې منسوب شوې دي، کله چې د ورثې له ډلې وګرځي، د میراث وړ پېژندل کېږي او د بل تن موجودیت هغوی له میراثه نشي محرومولی.
۷ـ هغه ورثه چې د حرمان حجب په اساس له میراثه محرومېږي یعنې په ورثه کې د بل تن موجودیت د دوی د میراث نه د حرمان سبب کېږي او هغه د هغو شپږو تنو څخه پرته نوره ورثه ده چې مخکې ذکر شوېده، دا کسان هر کله چې مستقیماً مړي ته منسوب شوي نه دي، بلکې د بل کس په واسطه منسوب دي، نو په ځینو حالتونو کې د میراث مستحق او په ځینو نورو حالتونو کې له میراثه محرومېږي.

**د تدریس طریقه:**

**پوښتنه او ځواب، انفرادي، مباحثوي او تشریحي.**

| وخت | فعالیتونه |
|---|---|
| ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی ټولګي ته په داخلېدو د سلام او روغبړ څخه وروسته تېر شوی لوست ارزوي.<br>د ځوابونو په اورېدو د نوي لوست سرلیک په لوی خط په تخته لیکي او زده کوونکو ته وایي چې لوست د ځانونو سره په پټه خوله مطالعه کړي او ستونزمنې کلمې دځان سره نښه کړي او ښوونکی په خپله د لوست بغلي سرلیکونه په تخته لیکي او بیا یې ورته شرح کوي او د لوست په ترڅ کې زده کوونکو ته د پوښتنو موقع ورکوي او ځوابونه ورته وایي. |
| | **د لوست لنډیز:**<br>د عصبه وو حق له میراث څخه مېره ته په نږدې والي او لرې والي سره ټاکل کېږي، نو هر څوک چې مړي ته نږدې وي د هغه وارث حق په لومړۍ درجه کې دی او که لومړۍ درجه ورثه شتون ونلري، نو بیا د وراثت حق د دویمې درجې دی، یعنې د مړي زامن تر ټولو مخکې دي، دویم د مړي پلار او نیکه او پورته ... دي. دریم د مړي د پلار اجزاء دي. یعنې وروڼه، څلورم د مړي د نیکه اجزاء دي، لکه کاکا او د کاکا زامن.<br>هر کله که د مړي د عصباتو درجې مساوي وي په هغه صورت کې خپلوۍ ته ارزښت ورکول کېږي.<br>بیا حجب ورته په لنډه توګه شرح کوي.<br>بالاخره زده کوونکي د درسي کتاب په پوښتنو ارزوي او کورنۍ دنده ورکوي چې د عصباتو د میراث د استحقاق قانون ولیکي او بیا یې له ځانونو سره راوړي. |

**لوست: شپږ دیرشم**

## سرلیک: د برخو مخرجونه

**مخ: ۱۱۵**

**وخت:** یو درسي ساعت

**موخې:** زده کوونکي باید:

۱_ د مخارجو برخې وپېژني.

۲_ د میراث د استحقاق قانون بیان کړای شي.

۳_ د مسئلو د مخرجونو شمېر وپېژني او بیان یې کړی شي.

**لازمي پوهه:**

هر کله چې ربع د اولې نوعې د ټولې دویمې نوعې یا ځینې سره په مسئله کې یو ځای شي، مسئله له دوو لسو ځخه پیل کېږي، په دې مسئله کې ربع د ثلث سره مختلطه او ګډه شوې ده، نو د مسئلې مخرج (۱۲) دی.

۱– هرکله چې نیم د اولې د ټولې دویمې نوعې یا ځینې سره په مسئله کې مختلطه او ګډه وی د دې مسئلې اصل د شپږمې کیږي. ۱۲

۲– هرکله چې د اولې ربع نوعی یا ځینې سره مختلطه وی اصل د مسئلې دولس دی ۱۲.

۳– هرکله چې ثمن د اولې نوعی یا ټولې نوعی یا ځینې سره مختلطه وی اصل د مسئلې ۲۴ کیږی.

مسئله له ۱۲ څخه

| ښځه (ربع)، | علاتي خور (ثلث)، | مورنۍ خورانې (سدس) |
|---|---|---|
| ۴ | ۳ | ٦ |

د ربع مخرج څلور او د ثلث مخرج درې او د سدس مخرج شپږ دی، نو ثلث په سدس کې داخل دی او د ربع او سدس ترمنځ تباین دی او د تباین قانون دا دی چې د یوه نصف په بل کې ضرب شي، مثلاً ربع چې نیم یې دوه دی د سدس په مخرج کې چې شپږ دي ضربېږي چې حاصل یې ۱۲ راځي. (۱۲=٦×۲).

او که اتمه د اولې نوعې د ټولې دویمې نوعې یا د ځینې سره په مسئله کې مختلطه او ګډه وي، د دې مسئلې صورت له (۲۴) څخه پیل کېږي.

مسئله له ۲۴ څخه

| ښځه (ثمن)، | لورانې (ثلثان)، | مور (سدس) |
|---|---|---|
| ۲\۱ | ۳\۲ | ٦\۱ |

چې د برخو ټول مخرجونه ۲۴، ۱۲، ٦، ۳، ۲ دي او برخې یې (۴) دي.

**د تدریس طریقه:** توضیحي، تشریحي، پوښتنې او ځوابونه:

| وخت | فعالیتونه |
|---|---|
| ۵دقیقې | ښاغلی ښوونکی د سلام او نورو مخکینیو موضوعاتو له وړاندې کولو وروسته د تېر لوست په هکله زده کوونکي ارزوي.<br>ښوونکی د ځوابونو له اورېدو وروسته د نوي لوست سرلیک د ((برخو مخرجونه)) په تخته لیکي او په ساده ژبه یې زده کوونکو ته شرح کوي. بیا ښوونکی زده کوونکي په درېو ګروپونو وېشي او دنده ورکوي چې مسئله څه وخت له (۱۲) څخه او څه وخته له (۲۴) څخه او څه وخت له (٦) څخه اخیستل کېږي، وروسته د هر ګروپ یو استازی یوه یوه مسئله عملاً په تخته حلوي. |
| ۱۰ دقیقې | **د لوست لنډیز:**<br>په قرآن کریم کې د برخو شمېر شپږ ذکر شوی او په دوه ډوله دي:<br>**۱ــ** نصف (نیم)، ربع (څلورمه) او ثمن (اتمه).<br>**۲ــ** ثلث (درېمه) ثلثان (دوه درېمې) او سدس (شپږمه)<br>که چېرې نصف د اولې نوعې د ځینې یا ټولې دویمې نوعې سره په مسئله کې موجود شي، نو د مسئلې صورت له شپږو څخه اخیستل کېږي.<br>که ربع د اولې نوعې څخه د ټولې دویمې نوعې یا ځینې سره په مسئله کې یو ځای شي، مسئله د دولسو څخه اخیستل کېږي.<br>که ثمن د اولې نوعې د ټولې دویمې نوعې یا د ځینې سره په مسئله کې یو ځای شي، د مسئلې صورت له (۲۴) څخه اخیستل کېږي. |
| | **ارزونه:**<br>ښاغلی ښوونکی د خپل اطمینان او ډاډینې لپاره زده کوونکي د درسي کتاب له ارزونې څخه ارزوي او بالاخره په کورنۍ دنده کې څو مسئلې ورکوي، څو په کور کې یې حل کړي. |

لوست: اووه دیرشم

## سرلیک: عول

**مخ: ۱۱۷**

**وخت:** یو درسي ساعت

**موخې:** زده کوونکي باید:

۱ـ د عول لغوي او اصطلاحي معنا وپېژني.

۲ـ د میراث د وېش وس په ځانونو کې ومومي.

**لازمي پوهه:**

عول په لغت کې په لاندې معنا ګانو استعمال شوی دی:

۱ـ د ظلم او د حق نه د کږېدو په معنا دی، لکه چې وایي: ((عال القاضي من الحکم)) یعنې قاضي په خپل حکم کې ظلم وکړ او له حق نه کوږ شو.

۲ـ د غلبې په معنا دی، لکه چې وایي: ((عال صبره)) صبر یې غلبه وکړه.

۳ـ د لوړتیا په معنا دی، لکه چې وایي ((عال المیزان)) تله جګه شوه.

د میراث د علماؤو په اصطلاح کې عدل د ذوی الفروضو په برخو کې د اصل مسئلې څخه زیاتوالی او د ترکې نه د ذکر شوي زیاتوالي په پرتله د دوی د برخو نه کموالی دی.

د عول موضوع په میراث کې د لومړي ځل لپاره د حضرت عمرؓ د خلافت په وخت کې رامنځ ته شوه او د میراث په یوه مسئله کې چې په هغې کې مېړه او دوه اعیانې (پلرنۍ او مورنۍ) خویندې د مړي ورثه وې صحابه وو ته یې وویل: کله چېرې د ورثې هر یوه ته له ترکې څخه خپله برخه ورکړ شي، نو بل ته کامله برخه نه رسېږي. ما ته مشوره راکړئ چې په دې هکله څه وشي؟ حضرت علي کرم الله وجههُ او زید بن ثابتؓ په ذکر شوې مسئله کې د عول مشوره ورکړه او حضرت عمرؓ د صحابه کرامو د مشورې په اساس په موضوع کې د عول حکم صادر کړ او دا حکم د ټولو صحابه وو د منلو وړ وګرځېده او هیڅ یو يې مخالفت ونکړ. د حضرت عمرؓ د خلافت نه وروسته ابن عباسؓ د لاندې دلایلو په استناد له دې حکم څخه مخالفت څرګند کړ:

۱ـ د قرآني نصوصو په بنسټ چې د هر وارث برخه پکې ټاکل شوې ده د هر وارث حق باید په بشپړه توګه ورکړی شي او که د ترکې نه هر وارث ته د پوره حق ورکولو امکان نه و، نو د هغه وارث په برخه کې باید کمی وشي چې کله له ټاکلې برخې څخه غیر ټاکلې برخې ته انتقال مومي، لکه لور او خور چې د خپلو وروڼو په واسطه د فرضیت صفت له لاسه ورکړي، عصبه ګرځي او د ټاکلې برخې نه غیر ټاکلې برخې ته انتقال کوي.

۲ـ کله چې وروڼه او زامن د ورثې له ډلې واوسي، پاتې ترکه د ذوی الفروضو له برخې وروسته د عصوبت په توګه مستحق ګرځي. لور ا و خور هم باید په دې حالت کې یعنې کله چې دمړي د ترکې نه د هغو د برخې ورکول په بشپړه توګه ممکنه نه وي، نو د پاتې شوي مال مستحق ګرځي.

۳ـ د مړي په ترکه کې چې ډېر حقوق ورپورې تړلي وي او ټول حقوق ورځنې اجراء کېدای نشي، نو د ترکې نه د استخراج قوي حق د اولیت حق لري.

په دې ځای کې هم هغه ذوی الفروض چې په ترکه کې ټاکلې برخه لري د هغه ذوی الفروضو نه چې ټاکلې برخې نه دریو غیر ټاکلو برخو ته انتقال کوي، ډېر قوي دی، ځکه ذوی الفروض د عصبه په پرتله د میراث په استحقاق کې وړاندې والی لري او د هغه په اساس باید په نوره ورثه په استحقاق کې غوره والی ولري.

اما نور قدرمن صحابه او د څلورو واړو مذهبونو فقها، د میراث په مسئلو کې عول د لاندې دلیلونو په استناد د تطبیق وړ ګڼي.

۱ـ قرآني آیتونو چې د ورثې برخه ټاکلې ده، هغه د ذوی الفروضو ترمنځ تفرقه نه مني او د یوه وړاندې والي په بل باندې کوم اساس نه لري.

۲ـ کوم حقوق چې په ترکې پورې تعلق ونیسي او ټول په قوت او ضعف کې مساوي واوسي باید مساوي اداء شي او که په ترکه کې ټولو ته د ورکولو امکان نه وي، نو ضرر باید د هر یوه د حق په پرتله د حق خاوندانو ته متوجه شي، نه دا چې یوه ته پر بل ترجیح ورکړه شي. په دې ځای کې هم ټوله ورثه د ذوی الفروضو له ډلې څخه ده باید یوه ته پر بل د ترکې په استحقاق کې ترجیح ورکړه شي او که کله د ترکې نه په کامله توګه د دوی د حق ورکولو امکان نه وي، ضرر باید د حق په پرتله هر یوه ته متوجه شي.

۳ـ په میراثي مسئلو کې د عول حکم چې د ترکې نه د هر وارث د مکمل حق اجراء ممکنه نه وي، مخکې له دې نه چې ابن عباسﷺ خپل مخالفت څرګند کړي په اجماع سره صورت نیولی، نو د ده مخالفت د اجماع له ترلو وروسته د قبول جوګه نه دی.

که ذکر شوو دلیلونو ته نظر واچول شي د صحابه کرامو او د مذاهبو د فقها دلیلونه چې په میراثي مسئلو کې د ترکې نه د هر وارث شتون په بشپړه توګه پکې امکان ونه لري، نو حکم یې په عول سره کړی او دا د حق او عدالت سره ډېر نږدې دی.

د عول د مسئلې د حل صورت دا رنګه دی چې نصف ته ثلث سره جمع شوی او د مسئلې صورت له څلورو څخه دی. مېړه ته نیمه (۳) عمې ته نیمه (۳) او مور د ثلث (۲) ده.

د مسئلې اصلي مخرج (۶) عول یې کړی (۸) ته

مېړه (۳) مور (۲) عمه (۳)

که د مسئلې مخرج (۷) وي هم جفتو هم طاقو (۱۰، ۹، ۸، ۷) ته عول کوي.

او که مسئله (۶) او عول (۷) و داسې ده چې:

مسئله ۶ عول ۷

مېړه نصف (۳) عمه ثلثان (۴)

هر کله که مسئله ۶ عول (۸) ته وکړي دا رنګه ده:

اصل مسئله ۶ عول ۸

مېړه (۳) دوه علاتي خویندې (۴) اضافي خور (۱)

۱+۴+۳=۸

که مسئله د (۶) څخه (۷) ته عول وکړي، څرنګه حل کېږي وروسته د ګروپونو له استازیو څخه غواړي چې کومه مسئله یې په کتابچو کې حل کړې ده هغه په تخته ټولګیوالو ته حل کړي، د بېلګې په توګه: ښځه وفات شوه او وارث یې مېړه او دوه اعیاني خویندې دي:

ښځه مسئله (۶) (۷) ته عول کوي

مېړه (۱/۲) دوه اعیاني خویندې (۲/۳)

۳ ۴

کله چې د وارثانو برخې جمع شي مجموعه یې (۷) کېږي، نو د (٦) عدد (۷) ته عول کوي او (۷) عدد د مسئلې حل ګڼل کېږي او د هغو مطابق ترکه پر ورثه وېشل کېږي.
وروسته د لوست خلاصه ورته بیانوي او د درسي کتاب له مخې دوی ارزوي.
او په کورنۍ دنده کې ورته داسې مسئله ورکوي، څو دوی یې حل کاندي.
سکینه مړه ده مېړه، مور او عمه ترې پاتې دي مسئله له څو څخه نیول کېږي او حل یې کړئ.

| وخت | فعالیتونه |
|---|---|
| ۵دقیقې | ښاغلی ښوونکی د مقدماتي موضوعاتو څخه وروسته د تېر لوست ارزونه کوي، مثلاً وایي:<br>۱_ څوک ویلای شي چې د عول لغوي او اصطلاحي معنا څه ده؟<br>۲_ د عول په هکله لومړنی حکم چا صادر کړی دی؟<br>د ځوابونو له اورېدو وروسته د نوي لوست سرلیک (تماثل، تداخل، توافق او تباین د دوو عددونو ترمنځ) په لوی خط لیکي او زده کوونکو ته دنده سپاري څو لوست په چوپتیا سره ولولي او ستونزمنې کلمې یاداښت کړي.<br>بیا وروسته ښوونکی د بغلي سرلیکونو په نظر کې نیولو سره لوست شرح کوي او په مهمو ټکو ډېر ترکیز کوي ا و هغه په تخته لیکلي.<br>بیا زده کوونکي په ګروپونو وېشي څو د دوو عددونو ترمنځ د توافق او تباین په هکله په خپلو کې بحث او څېړنه وکړي او بیا یې استازي ټولګیوالو ته شرح کوي. په پای کې ښوونکی ټول ګروپونه تشویقوي.<br>**د لوست لنډیز:**<br>تماثل: د عددونو ترمنځ مساوي حالت ته تماثل ویل کېږي.<br>_ توافق: د دوو عددونو ترمنځ نسبت ته ویل کېږي چې یو او بل نشي محو کولای اما درېم عدد دواړه محوه کولای شي.<br>تداخل: د دوو عددونو ترمنځ هغه نسبت دی چې یو پر بل باندې په مکمله توګه تقسیمېږي، دېته تداخل ویل کېږي.<br>تباین: د عددونو ترمنځ هغه نسبت دی چې نه یو بل محوه کولای شي او نه درېم عدد دواړه محوه کولای شي.<br>**ارزونه:**<br>ښوونکی د درسي کتاب له ارزونې څخه زده کوونکي ارزوي او کورنۍ دنده ورکوي، مثلاً که د مسئلې اصل برخې په یوه طایفه پوره تقسیم نشي او د برخو او د طایفې د عدد ترمنځ نسبت موافقت ولري، نو د مسئلې تصحیح څرنګه صورت نیسي په خپلو کتابچو کې یې حل او راوړئ. |

**لوست: اته ديرشم او نهه ديرشم**

## سرليک: تماثل، تداخل ... او تصحيح

**مخ: ۱۱۹-۱۲۲**

**وخت:** دوه درسي ساعتونه

**موخې:** دزه کوونکي باید:

۱_ تماثل، تداخل، توافق او تباين وپېژني.

۲_ د دوو عددونو ترمنځ د توافق او تباين د پېژندلو طريقه پيدا کړي شي.

۳_ تصحيح وپېژني او د ميراث په مسئلو کې يې تطبيق کړای شي.

**لازمي پوهه:**

**د ۳۸ او ۳۹ لوست لپاره:**

په ځينو مسئلو کې د ځينو ورثه وو برخې د ورثې په شمېر پرته له کسر څخه د تقسيم وړ نه وي، يعنې که چېرې د ورثه برخې د دوی په تعداد تقسيم شي د صحيح عدد د مخارجو قسمت صحيح په لاس نشي راتلی، بلکې کسري عدد وي، په دې حالت کې دا چې د ورثه برخه د دوی په تعداد د صحيح عدد په توګه د تقسيم وړ وګرځي، حسابي معامله بايد ترسره شي چې د دې عمليې ترسره کول د ميراث د علماؤ په اصطلاح کې تصحيح يادېږي.

تصحيح د هغه وړوکي عدد څخه عبارت ده چې د هر وارث برخه له هغو نه د صحيح عدد په توګه لاس ته راشي، تر ټولو د وړوکي عدد لاس ته راوړل چې د مسئلې تصحيح واوسي او د هر وارث برخه د هغه نه د صحيح عدد په توګه لاس ته راشي، د ورثې د نوعې په اختلاف سره چې د هغو برخې د دوی د شمېر په پرتله په صحيح توګه د تقسيم وړ نه وي، مختلف کېږي.

د ميراث په مسئله کې چې د يوې نوعې يا يو صنف برخه د هغوی په شمېر د تقسيم وړ نه وي د وړوکي عدد د لاس ته راوړلو لپاره چې د مسئلې تصحيح وګرځي، د هغې ورثې برخه او تعداد چې د دوی برخه د دوی په تعداد د تقسيم وړ نه وي د بحث مورد ګرځي چې په کوم عددي تناسب د تماثل، توافق او تباين له نسبتونو څخه يو د بل سره قرار لري.

که چېرته د ورثې برخه او شمېر په يوه بل عدد باندې د تقسيم وړ وو يعنې د ميراث د علماؤ په اصطلاح هر کله که د برخې او د ورثه وو د تعداد ترمنځ توافق شتون درلود، نو د هغه نوعې د ورثې تعداد په هغه تقسيمېږي او خارج قسمت د مسئلې په اصل کې ځای نيسي او د ټولې ورثې برخه له هغه څخه پرته له کسره لاس ته راځي، مثلاً يو نفر وفات شو او له هغه څخه پلار، مور او لس لوراني پاتې شوې:

| | مسئله له (٦) | | |
|---|---|---|---|
| | پلار ۱/٦ | مور (۱/٦) | ۱۰ لوراني ۴/٦ |
| هر وارث برخه د اصل مسئلې څخه: | ۱ | ۱ | ۴ |
| | سدس | سدس | ثلثان |

مضروب: ۵ او تصحيح ۳۰

| د هر وارث برخه له تصحيح | ۵ | ۵ | ۲۰ |
|---|---|---|---|

په دې مثال کې د لورانو شمېر لس نفره دی او برخه يې (۴) ده او هغه په لورانو د صحيح عدد په توګه تقسيمېږي. د دې لپاره چې هره لور د صحيح برخې لرونکې وي، د تصحيح عمليه بايد ترسره شي او هغه داسې ده چې د ۱۰ د تعداد او ۴ برخو ترمنځ عددي نسبت پيدا کېږي، نو ليدل کېږي چې د دې عددونو څخه هر يو په يو دريم عدد چې (۲) دی، د تقسيم

وړ دی، نو د وړئې شمېر په هغه تقسیمېږي او خارج قسمت چې (۵) دی د مسئلې اصل (٦) کې ضربېږي، د ضرب حاصل (۳۰) د تصحیح څخه عبارت دی.

| وخت | فعالیتونه |
|---|---|
| ۵دقیقې | ښاغلی ښوونکی د مقدماتي موضوعاتو څخه وروسته د تېر لوست ارزونه کوي، مثلاً وايي:<br>۱ـ څوک ویلای شي چې د عول لغوي او اصطلاحي معنا څه ده؟<br>۲ـ د عول په هکله لومړنی حکم چا صادر کړی دی؟<br>د ځوابونو له اورېدو وروسته د نوي لوست سرلیک (تماثل، تداخل، توافق او تباین د دوو عددونو ترمنځ) په لوی خط لیکي او زده کوونکو ته دنده سپاري څو لوست په چوپتیا سره ولولي او ستونزمنې کلمې یادانښت کړي.<br>بیا وروسته ښوونکی د بغلي سرلیکونو په نظر کې نیولو سره لوست شرح کوي او په مهمو ټکو ډېر ترکیز کوي ا و هغه په تخته لیکلي.<br>بیا زده کوونکي په ګروپونو وېشي څو د دوو عددونو ترمنځ د توافق او تباین په هکله په خپلو کې بحث او څېړنه وکړي او بیا یې استازي ټولګیوالو ته شرح کوي. په پای کې ښوونکی ټول ګروپونه تشویقوي.<br>د لوست لنډیز:<br>تماثل: د عددونو ترمنځ مساوي حالت ته تماثل ویل کېږي.<br>ـ توافق: د دوو عددونو ترمنځ نسبت ته ویل کېږي چې یو او بل نشي محو کولای اما درېم عدد دواړه محوه کولای شي.<br>تداخل: د دوو عددونو ترمنځ هغه نسبت دی چې یو پر بل باندې په مکمله توګه تقسیمېږي، دېته تداخل ویل کېږي.<br>تباین: د عددونو ترمنځ هغه نسبت دی چې نه یو بل محوه کولای شي او نه درېم عدد دواړه محوه کولای شي.<br>ارزونه:<br>ښوونکی د درسي کتاب له ارزونې څخه زده کوونکي ارزوي او کورنۍ دنده ورکوي، مثلاً که د مسئلې اصل برخې په یوه طایفه پوره تقسیم نشي او د برخو او د طایقې د عدد ترمنځ نسبت موافقت ولري، نو د مسئلې تصحیح څرنګه صورت نیسي په خپلو کتابچو کې یې حل او راوړئ. |

**لوست: څلوېښتم**

## سرلیک: د ورثې ترمنځ د متروکې د وېشلو طریقه:

**وخت:** یو درسي ساعت

**مخ:** ۱۲۳

**موخې:** زده کوونکي باید:

۱_ د ورثې ترمنځ د متروکې د تقسیم طریقه وپېژني.

۲_ د مړي د متروکې مال تقسیم کړای شي.

۳_ د وارثانو د هر یوه برخه وټاکي او نورو ته یې هم بیان کړی شي.

**لازمي پوهه:**

**ترکه او په هغه پورې اړوند حقوق:**

ترکه: د میراث بنسټیز رکن دی، نو که ترکه شتون ونلري میراث او وصیت شتون نه لري. ترکه لـــه ((الترکـــه)) څخـــه اخیستل شوې ده او هغه څه ته ویل کېږي چې مړی یې تر شا پرېږدي.

یا په بله وینا ترکه هغه مالونه دي چې مړی یې د مرګ نه وروسته پرېږدي.

اما د ترکې د ماهیت په ټاکلو کې چې کوم شیان پکې شاملېږي او کوم نه پکې شاملېږي فقهاء د دې په هکله اختلاف لري په دې توګه:

**الف_ جمهور فقهاء عقیده لري چې لاندې څیزونه په ترکه کې شاملېدای شي:**

۱_ مالونه: برابره ده غیر منقولي وي، لکه ځمکه، فابریکه، کور یا منقولي وي، لکه پیسې، طلا، نقـــره، کتـــاب، د کـــور سامان، موټر ... نو په دې ټولو د «ما» وصفیت رېښتېنی کېږي.

همدارنګه د مړي قرضونه چې په خلکو وي او که مورث وژل شوی وي دیت هم په ترکه کې حسابېږي.

۲_ منافع او ګټې: لکه څوک چې کوم کور یا اداره په اجاره ونیسي، نو هغه د هغه کور یا ادارې عین مالـــک نـــه دی، بلکـــې د اجارې په عقد او د تړون د شرطونو سره سم د منافعو مالک وي او دا حق د جمهورو فقهاؤو په نزد په میراث وړل کېږي.

۳_ حقوق: لکه د مؤلف لپاره د نشر او خپروني حقوق چې وارثانو ته نقل کېږي او د شفعې حق چې د مورث لـــه مرګـــه وروسته وارثانو ته د یوه ثابت حق په توګه پاتې کېږي او د وصیت د قبلېدو حق، یعنې که کوم نفر چا ته د خپل مال په دربمه کې وصیت وکړ، نو د ده په مرګ سره هغه څوک چې وصیت ورته شوی د وصیت مستحق ګڼل کېږي، اما که د وصیت له اخیستلو مخکې مړ شو، دا د ده حق وارثانو ته نقل کېږي.

او د ګروی حق هم همداسې دی، مثلاً احمد د علي نه لس زره افغانۍ قرض اخلي او یو څه علي ته په ضمانت کـــې ګـــرو ورکـــوي، بیا علي مړ کېږي او په احمد یې قرض پاتې کېږي، نو هغه ګرو شوی شی د علي ورثې ته د قرض تر اداء کولو پورې پاتې کېږي.

دا مالونه، حقوق او منافع د جهورو فقهاؤو په نزد په میراث وړل کېږي او دلیل یې هغه روایت دی چـــې د رســـول الله ﷺ څخه یوه صحابي روایت کړی، فرمایي: له چا څخه چې څه مال یا حق پاتې شي هغه یې د ورثې دی او د کورنۍ کفالت یـــې زما سره دی او حدیث ټینګار کوي چې مالونه او حقوق وارثانو ته رسېږي او هغه منافع چې د مال سره د ارزښـــتني وړ وي، هغه هم په مال پسې پیوست کېږي.

احناف وایي یوازې مال په میراث پاتې کېدای شي، منافع او حقوق او د اجارې او ګروی تړون د ترکې جزء نه ګڼي، مـــثلاً که یو څوک مړ شي او ده کوم کور اخیستی وي او قیمت یې نه وي ورکړی دا حق په میراث نه وړل کېږي.

د کور د خاوند حق دی چې خپل کور بېرته واخلي او چې یې چې پیسې نه وي حاصلې کړی د معاملې څخـــه دې رجـــوع وکړي او دلیل یې هغه روایت دی چې پیغمبرﷺ فرمایي: د چا نه چې مال پاتې شي مال یې د وارثانو دی او پـــه دې روایـــت کې د حق کلمه نده راغلې او منافع هم د احنافو په نزد مال نه دی.

**ب_ په ترکه پورې اړوند حقوق:**

**۱_ کفن، غسل او د مړي خښول:**

لومړنی شی چې د مړي له ترکې څخه اخیستل کېږي، دمړي تکفین، تجهیز او خښول دي. د عرف او دود له مخې چې د شریعت سره خلاف نه وي او د اعتدال او انډول څخه کار واخیستل شي، ځکه الله فرمايي: ((وَالَّذِينَ إِذَا أَنفَقُوا لَمْ يُسْرِفُوا وَلَمْ يَقْتُرُوا وَكَانَ بَيْنَ ذَلِكَ قَوَامًا))(الفرقان/٦٧)

ژباړه: او هغه کسان چې کله لګښت کوي نو نه بې ځايه لګښت کوي (اسراف) او نه بخيلي بلکې د هغو لګښت د دغو دواړو ترمنځ ولاړ وي.

هو! خاورو ته د سپارلو مراسم، غسل، کفن او هدیرې ته وړل او خښولو ته شاملېږي او دا لګښتونه د قرضونو په ورکولو او وصيت پوره کولو مقدم او وړاندې دي او کوم لګښتونه چې د ریا او وياړ او شهرت لپاره کېږي او په درېمه، اوومه، څلوېښتمه او کلنۍ مراسمو کې کېږي هغه ټول بدعتونه دي او کوم اصل نه لري. که د وړو يتيمانو په مال کې هر څه د شرعي خلاف لګښتونه وکړل ذمه واري يې په همده ده. د يتيم له ماله نه اخيستل کېږي.

او که کوم مړی مال او شته نه لري، نو دا لګښتونه دې يو مالدار سړی په ذمه واخلي او که نه، نو بيا د مسلمانانو د بيت المال څخه اجراء کېږي.

د مېرمنې د مړينې لګښتونه هم په مېړه دي نه په ښځه ولو که دواړه يو ځای مړه شي او يا ښځه مړه شي او مېړه ژوندی وي، ځکه د ښځې نفقه په هر حال په مېړه ده هم په ژوند کې او هم له مرګه وروسته.

**۲_ د قرضونو اداء کول:**

کوم قرضونه چې د انسان په ذمه باندې اړه لري برابره ده د شرعي نصوصو په واسطه پرې واجب شوي وي، لکه د ښځې او اولادونو نفقه يا د زکات او نذر ورکول او يا د کوم تړون په وسيله تر انسان پورې اړوند وي، لکه په يوه معامله کې چې څوک قرضدار وي يا د اجارې تړون وي، يا د نکاح تړون وي چې مېړه بايد مهر ورکړي.

يا دا چې د چا مال يې خراب کړی وي يا يې د مضاربت په معامله کې قصداً کمی کړی وي، نو ضامن ګڼل کېږي. دا ټول قرضونه بايد د وصيت او ترکې له وېش څخه مخکې اداء شي. همدا رنګه نااداء شوی زکات بايد اداء شي، ځکه دا د الله حق دی او د فقيرانو او مسکينانو حقوق بايد پرته له غوښتلو ورکړ شي.

اما هغه قرضونه چې تر خلکو پورې اړه لري، لکه د ښځې مهر يا د تجارتي معاملو قسطی ورکړې يا مياشتنۍ اجاره، ګروي او ... د هغو په ورکړه کې هېڅ اختلاف نشته.

همدارنګه هغه قرضونه چې ورکړه يې د دين له امله واجب ده نه د قضا له امله يعنې که د مړي کورنۍ له کوم قرض څخه خبرتيا حاصله کړي او هغه يې اداء کړي د مړي لپاره خير دی او د ده ذمه پرې خلاصېږي اما قاضي نشي کولای چې په اداء کولو يې د مړي کورنۍ مجبوره کړي. د حنفي مذهب مطابق د يوه سړي په مرګ سره الهي قرضونه ورځنې ساقطېږي، ځکه په هغه کې د عبادت معنا ده او د خاوند تر نيته پورې اړتيا لري.

**۳_ د مړي د وصيتونو ترسره کول د شريعت په پولو کې:**

وصيت يو بيله عوضه تمليک دی چې د مرګه وروسته جاري کېږي او اجراء يې په درېمه برخه مالونو کې ده د تکفين او تجهيز وروسته پرته د ورثې له اجازې اما که تر درېمې برخې يې زيات وصيت کړی و، بيا د وارثانو اجازه پکې شرط ده. که ټول اجازه ورکړي وصيت جاري کېږي.

همدارنګه که څوک خپل نيم ميراث د قرآن کريم د حفظ مرکز ته يا ديني مدرسو ته وصيت وکړي، درېمه يې پرته د ورثې له اجازې اجراء کېږي او له درېمې زيات د ورثې تر اجازې اړه لري. که ځينې اجازه وکړي او ځينې يې ونکړي د اجازې ورکوونکو له حقه اخيستل کېږي، نه د نورو څخه .

د قرض وړاندې والی پر وصيت باندې:

دلته سوال پیدا کېږي چې ولې د وصیت اداء کول د قرض نه وروسته راغلی حال دا چې قرآني آیت وصـیت پـه قـرض وړاندې کړی دی، لکه: ((مِن بَعْدِ وَصِيَّةٍ يُوصِي بِهَا أَوْ دَيْنٍ)) (النساء/۱۱)

که څوک وارث ونلري او خپل ټول شته چاته وصیت کړي او یایې د خیر په لارکې وصیت کړي پرته له مراجعه کولو چاته نافذ دی.

قرطبي داسې ځواب وايي:

۱ـ د اجماع سره سم د قرض ورکول په وصیت مقدم دي او علماؤ هم په دې عمل کړی دی او د ترمذي په روایت نبـي کریمﷺ هم د قرض اداء کول په وصیت وړاندې کړې دي.

۲ـ د آیت مرام د قرض او وصیت وړاندې والی په ارث دی نه د وصیت وړاندې په دین باندې.

۳ـ کله چې د وصیت لازموالی د دین څخه کم وي، باید د قرض اداء کولو ته پاملرنه زیاته وشي.

۴ـ او ویل شوي چې وصیت په غالبه توګه شتون لري او همېشه واقع شوی، نو پر قرض وړاندې دی.

۵ـ او ویل شوي چې وصیت د فقیرانو او بېوزلانو برخه ده، باید وړاندې شي او قرض د قوي او بډایانو خلکـو برخـه ده هغه وروسته کېږي.

شیخ دکتور مصطفی شبلي وايي: د وصیت وړاندې والی پر قرض بل حکمت لري، هغه دا چې: وصیت بـې لـه عوضـه اخیستل کېږي دا د میراث په شان دی او اداء کول یې وارثانو ته سخت دی او په هغه کې د سستۍ او نه پاملرنې احتمـال لار لري او په آیت کې یې وړاندې ذکر کړی، څو مقام او ارزښت یې زیات وښودل شي او اداء کولو ته یې هڅه او تـشویق وشي، په خلاف د قرض ځکه قرض د عوض په مقابل کې اخیستل شوی، ممکنه ده په ترکه کې شتون لري، نو قرض قوي او پیاوړی حق دی، سستي او غفلت پکې نشي کېدای، نو د صیت نه یې وروسته ذکر کړی دی.

که څوک وارث ونلري او خپل ټول شته چا ته وصیت کړي یا یې د خیر په لار کې وصیت کړي وصیت یې پرته له مراجعه کولو چا ته نافذ دی.

<table>
<tr><th>وخت</th><th>فعالیتونه</th></tr>
<tr><td>۵دقیقې</td><td>ښاغلی ښوونکی ټولګي ته د ننوتلو سره د سلام اچولو او روغبړ څخه وروسته تېر شوی لوست په څو پوښـتنو سره ارزوي او بیا د نوي لوست سرلیک ((د ورثه ترمنځ د متروکې د وېش طریقه)) پـه تختـه لیکـي او زده کوونکو ته امر کوي څو لوست د ځانونو سره په چوپتیا سره ولولي، وروسته یې په ساده او روانه ژبـه ورتـه شرح کوي او د کتاب مثالونه عملاً په تخته ورته حلوي وروسته زده کوونکي په څو ګروپونو وېشي او دارنګه مسئله ورکوي، عبدالله وفات شوی او له ده څخه پلار، مور او دوه لورانې پاتې دي. د مړي پانګه شـپږ سـوه (۶۰۰۰۰۰) زره افغانۍ دي، نو دا د وارثانو ترمنځ تقسیموي او ښوونکی ورسره مرسته کوي.<br><br>مسئله (۶) څخه<br><br>پلار | ام | دوه لورانې<br>سدس (۱/۶) | سدس(۱/۶) | ثلثان (۲/۳)<br>۱ | ۱ | ۴<br><br>د پلار لپاره سل زره (۱۰۰۰۰۰) افغانۍ<br>د مور لپاره سل زره (۱۰۰۰۰۰) افغانۍ<br>د لورانو لپاره څلور سوه زره (۴۰۰۰۰۰) افغانۍ رسېږي.<br>وروسته د لوست لنډیز ورته شرح کوي، بیا د درسي کتاب له ارزونې څخه دوی ارزوي او په کورنۍ دنده کې دا مسئله ورکوي د احمد مړ دی او له ده څخه یوه ښځه دوه زامن او یوه لور پاتې دي او ټوله پانګه یې سـل زره افغانۍ دي، دا باید پرې تقسیم کړي او نتیجه یې د ځانونو سره راوړي.</td></tr>
</table>

لوست: یو څلویښتم

## سرلیک: تخارج

**مخ:** ۱۲۵

**وخت:** یو درسي ساعت

**موخې:** زده کوونکي باید:

۱ـ د تخارج لغوي او اصطلاحي معنا وپیژني.

۲ـ د متروکې د وېش طریقه په ورثه باندې زده کړي.

۳ـ وارثانو ته پوره حقوق ورکړای شي.

**لازمي پوهه:**

کله چې یو تن له ورثې څخه د نورې ورثې په رضایت او موافقه د ترکې څخه د یوه شي په اخیستلو مصالحه وکړي دې، ته د میراث د علم د علماؤ په اصطلاح کې تخارج ویل کېږي.

تخارج په حقیقت کې د معاوضې عقد دی چې یو د عوضینو څخه د ترکې څخه د وارث برخه ده او بل عوض مال دی چې د ترکې یا بل څه نه د ده د برخې په مقابل کې ورکول کېږي چې د هغه په اساس وارث د یوه ټاکلي او معین مال خاوند ګرځي او د ده ملکیت د هغه معینې برخې څخه چې د مړي په ترکه کې یې لري زائلېږي.

د تخارج د مشروعیت دلیل د میراث د علماؤ په وړاندې دا دی چې عبدالرحمٰن بن عوفﷺ وفات شو او ده څلور ښځې درلودې، یوې ښځې ته یې چې د تماضر په نامه وه طلاق ورکړی و، حضرت عثمانﷺ دا طلاقه شوې د میراث مستحقه وګڼله او نورې ورثې دې ته (۸۳۰۰۰) زره دیناره د ترکې د برخې په مقابل کې ورکړې او مصالحه یې ورسره وکړه او هېڅ یوه صحابي هم په دې مسئله کې د حضرت عثمانﷺ سره مخالفت ونکړ او دا د صحابه وو، نه مخالفت د اجماع حکم لري.

په تخارج کې د ترکې د تقسیم کیفیت د حالتونو په اختلاف توپیر لري چې دلته د دوو مثالونو په ذکر کولو بسوالی کوو.

په داسې حالت کې چې د ورثې څخه څوک د معین مال په اخیستلو د نورو ورثه وو سره د مړي په ترکه کې د خپلې برخې په مقابل کې صلح وکړي، په دې حالت کې د ورثه وو برخه د مړي په ترکه کې ټاکل کېږي او دغه مصالحه کوونکي وارث ته چې په ترکه کې د خپلې برخې څخه تنازل کوي، هغه معین مال ورکول کېږي.

مثلاً یو تن وفات شو دوه زامن او یوه لور ورڅخه پاتې شول او ۵۰ جریبه ځمکه ترکه لري او یو د زامنو څخه د پنځه سوه زره (۵۰۰۰۰۰) افغانیو په مقابل کې د مړي د لور سره مصالحه وکړه چې د مړي د ترکې نه څه مه غواړه، دا روپۍ واخله، نو اوس اول د مړي په ترکه کې د ورثه وو برخه تعینېږي.

ورث: لور زوی زوی

فروض: د عصوبت په اساس د میراث مستحق دي او زوی ته د لور په پرتله دوه چند برخه ورکول کېږي.

اصل مسئله (۵) ده.

د هر وارث برخه د اصل مسئلې څخه یوه لور ته دوه زوی ته دوه بل زوی ته

| | |
|---|---|
| د هرې برخې قیمت | ۱۰=۵۰/۵ |
| د لور برخه | ۱۰=۱۰.۱ |
| د زوی برخه | ۲۰=۱.۲ |
| د بل زوی برخه | ۲۰=۱.۲ |

له دې تعین څخه وروسته د مړې د لور برخه چې د یوه زوی سره یې د (۵۰۰۰۰۰) افغانیو په مقابل کې صلحه کـــړې ده، نو ددې برخه دې زوی ته ورکول کېږي، نو د یوه زوی برخه ۳۰ جریبه او د بل زوی برخه ۲۰ جریبه کېږي.

یا مثلاً یوه ښځه وفات شوه او ورثه یې مېړه، مور او کاکا وو او ۳۰ جریبه ځمکه او مهر چې د مېړه په ذمـــه دی، دا ترکـــه ده، نـــو اوس مېړه د هغه مهر په مقابل کې چې د ده په ذمه دی د ترکې نه د نورې ورثې په رضایت د خپلې برخې څخه تېرېږي.

د مسئلې حل: اول د ورثې برخې تاکل کېږي.

| | | | |
|---|---|---|---|
| ورثه: | مېړه | مور | کاکا |
| فروض: | ۱/۲ | ۱/۳ | عصبه |

اصل مسئله: ٦

| | | | |
|---|---|---|---|
| برخې د اصل مسئلې نه: | ۳ | ۲ | ۱ |
| | نصف | ثلث | سدس |

د ورثې د برخو له تعین وروسته د مېړه برخه د اصل مسئلې څخه وضع کېږي او ترکه د ورثې د برخې مطابق د مېړه نه پرته په هغوی تقسیمېږي او د هغه په اساس ۳=۳−٦ .

د مور برخه: (۲) د کاکا برخه (۱) د یوې برخې قیمت ۱۰=۳۰/۳

د مور برخه: ۲۰=۲×۱۰ د کاکا برخه: ۱۰=۱×۱۰

| وخت | فعالیتونه |
|---|---|
| ۵دقیقې | ښاغلی ښوونکی د سلام له اداء کولو او حال پوښتنې څخه وروسته د تېر شوي لوست پـــه هکلـــه لـــه زده کوونکـــو څخـــه پوښتنې کوي.<br>وروسته د نوي لوست سرلیک (تخارج) په تخته لیکي او بیا لوست شرح کوي او مثالونه یې په تخته لیکي.<br>بیا زده کوونکي په څو ډلو وېشي او هرې ډلې ته یوه یوه مسئله ورکوي، څو هغه حل کړي.<br>د مثال په توګه عبدالرحمٰن مړ دی او وارثان یې ښځه، پلار او زوی دي او ۴۸ جریبه ځمکه په ترکه کې ورځنـــې پـــاتې ده او ښځې یې د سل زرو (۱۰۰۰۰۰) افغانیو په مقابل کې صلحه وکړه او په ترکه کې له خپل حق څخه تېره شوه.<br>عبدالرحمٰن مسئله له(۲۴)<br>ښځه ۱/٦ — پلار ۱/٦ — زوی<br>۳ — ۳ — (عصبه)<br>ثمن — سدس — ۴ — ۱۷<br>د یوې برخې قیمت ۲=۴۸/۲۴<br>د ښځې برخه: ٦=۳×۲<br>د پلار برخه: ۸=۴×۲<br>د زوی برخه: ۳۴=۱۷×۲ |
| ۱۰ دقیقې | د لوست خلاصه: درسي کتاب ته دې مراجعه وشي<br>ارزونه: له درسي کتاب څخه دې زده کوونکي وارزوي.<br>کورنۍ دنده: احمد مړ دی او له ده څخه (۲۰۰۰۰۰) افغانۍ او یو موټر پاتې دی، وارثان یې ښځه، دوه زامن او یوه لور ده، لور یې د موټر په مقابل کې له ترکې څخه تنازل کوي، نو دا مسئله حل کړئ. |

**لوست: دوه څلویښتم**

## سرلیک: رد

**مخ: ۱۲۷**

**وخت:** یو درسي ساعت

**موخې:** زده کوونکي باید:

۱ـ د رد لغوي او اصطلاحي معنا وپيژني.

۲ـ د رد هدف وپيژني او نورو ته يې بيان کړی شي.

۳ـ وپوهېږي چې رد په کومو ذوی الفروضو باندې کيدای شي.

۴ـ د متروکې د مال تقسيم د ورثه وو او حاملې ښځې ترمنځ وپيژني.

**لازمي پوهه:**

رد په لغت کې رجوع، ګرځېدنې او راستنېدنې ته وايي او په اصطلاح کې د ذوی الفروضو څخه د بقيه برخو راګرځېدل دي، نسبي ذوی الفروضو ته نه سببي ته، د دوی د برخو په تناسب کله چې عصبه شتون ونلري.

د ميراث د مسئلو په حل کې يادونه وشوه چې د هر وارث د برخې د ټاکلو لپاره، هغه کسر چې د ده په برخه دلالت کوي، هغه د مسئلې په اصل کې ضربېږي، د ضرب حاصل د اصل مسئلې نه د هر وارث له برخې څخه عبارت دی. او په هغه ميراثي مسئلو کې چې په هغو کې عول واقع شوی وي، نو کوم عدد چې په هغه باندې عول صورت نيولی وي او د ذوی الفروضو د ټولو برخو نه په لاس راغلی دی، هغه د اصل مسئلې قايم مقام دی او د هغو نه د هر وارث برخه تعينېږي.

په ميراثي مسئلو کې چې کله رد واقع شي، نو د هر وارث د برخې پيژندلو او ټاکلو طريقه دا ده چې که چېرې يو د زوجينو د وژنې په ډلو کې قرار ولري، نو خپله برخه د اصل مسئلې نه اخلي او هغه څه چې د زوجينو له برخې څخه وروسته په ترکه کې باقي پاتې کېږي، نو هغه ذوی الفروضو ته پرته له زوجينو څخه د دوی د برخې په پرتله د اصل مسئلې نه ورکول کېږي چې په دې توګه د زوجينو برخه اصل مسئلې ته منسوبېږي او ټولې برخې چې د اصل مسئلې نه د زوجينو د برخې نه وروسته باقي پاتې کېږي اصل ردي مسئله د نورو ذوی الفروضو لپاره پرته له زوجينو څخه قرار نيسي او د دوی د برخو په پرتله ترکه باقي پاتې کېږي او پر دوی وېشل کېږي.

لومړی په رديه مسئله کې که يوه نوع ورثه شتون ولري په دې حالت کې مسئله له دوو احتمالونو خالي نه وي:

۱ـ که چېرې د مړي په ورثه کې يو د زوجينو څخه د ورثې په ډله کې موجود نه وي په دې حالت کې که وارث يو تن وي ټوله ترکه د فرضيت او رد په اساس مستحق ګڼل کېږي او که ورثه له يوه څخه زياته وي، نو ترکه د دوی په شمېر مساوي وېشل کېږي.

د مثال په توګه: يو نفر وفات شو او له هغه څخه يوه لور پاتې شوه، نو ټوله ترکه د لور لپاره د فرضيت او رد په اساس ورکول کېږي او که لورانې يې له يوې څخه زياتې وي، يعنې پنځه وي، نو د لورانو شمېر اصل مسئله نيول کېږي او هره يوه لور ۱/۵ ترکه د فرض او رد په اساس اخلي. لنډه دا چې په ميراثي مسئله کې که يو له زوجينو څخه نه وي او ورثه يوه نوعه يا يو صنف ذوی الفروض واوسي او عصبه هم شتون ونلري، نو ترکه د ورثې په شمېر وېشل کېږي او د ورثې شمېر درد يې مسئلې اصل نيول کېږي.

۲ـ هر کله که د ورثې سره يو د زوجينو هم شتون ولري، نو که په دې حالت کې يو د زوجينو خپله ټاکلې برخه د کسري مخرج نه چې د ده برخه ټاکي، واخلي نو باقې نورې ورثې ته ورکول کېږي او د دوی ترمنځ مساوي. د فروضو او رد په

اساس تقسیمېږي. د مثال په توګه که د یوه مړي وارثان ښځه او مور وو، نو په ښحه په دې حالت کې رد صورت نه نیسي او د ربع ۱/۴ مستحقه ده، نو کسري مخرج چې د دې برخه ټاکي، یعنې (۴) عدد اصل مسئله نیول کېږي او ښځه له هغې څخه خپله برخه اخلي او پاتې ترکه د ښځې له برخې وروسته (۳/۴) لپاره د مور ده، البته د فرضیت اورد په اساس.

او یا که ښځه وفات شي او وارثان یې مېړه او درې لورانې وي، په دې حالت کې هر کله چې په مېړه رد صورت نه نیسي، نو هغه د ترکې نه ۱/۴ د فرضیت په اساس خپله ټاکلې برخه اخلي او کسري مخرج چې د هغه برخه ټاکي یعنې (۴) عدد اصل مسئله نیول کېږي او مېړه له هغه نه خپله برخه اخلي او باقي د مېړه د برخې نه وروسته ۳/۴ د دریو لورانو لپاره ده. د فرضیت او رد په اساس او د دوی ترمنځ مساوي وېشل کېږي.

او که یا ښځه مړه شي او وارثان یې مېړه او درې لورانې وي، په دې صورت کې مېړه مستحق د $\frac{1}{4}$ دی چې د فرضیت په اساس به یې اخلي او هر کله چې په مېړه په دې صورت کې رد نشي کېدای، نو د خپلې ټاکلې برخې ۱/۴ مستحق ګرځي او باقي ترکه د لورانو ده د فرضیت او رد په اساس.

هر کله چې په دې مسئله کې وارثان له دوو جدا نوعو څخه دي، یعنې مېړه له اولې نوعې څخه چې برخه یې ۱/۴ (ربع) ده او لورانې له دویمې نوعې څخه دي چې برخه یې ۲/۳ (ثلثان) دي اصل مسئله د ۱۲ څخه نیول کېږي او د دې اصل ربع د مېړه لپاره او ثلثان د لورانو لپاره ورکول کېږي او یوه برخه د ردیه په سرلیک هم لورانو ته ورکول کېږي، لکه په دې مثال کې ښه واضح شوېده:

اصل مسئله ۱۲

مېړه درې لورانې

۳ د فرضیت برخه (۸) او ردیه برخه (۱)

لور (۳)، لور (۳)، لور (۳)

دویم: هر کله که په ردیه میراثي مسئله کې له یوې نوعې څخه زیاتې یا یو صنف وارث شتون ولري، په دې حالت کې به هم مسئله له دوو حالتونو خالي نه وي:

۱ـ دا چې د ورثې سره به یو له زوجینو د ورثې له ډلې څخه نه اوسېږي، نو د ترکې په وخت کې به د ورثې په برخو چې د اصل مسئلې نه یې اخیستې وي وېشل کېږي او د ورثې ټولې برخې چې د اصل مسئلې نه لاس ته راغلې، اصل نوې مسئله چې د ردي اصل په نامه یادېږي قرار نیسي او د ترکې اساس تقسیم دی، مثلاً یو تن وفات شو او ورثه یې مور او علاتي خور او موري خور ده او (۶۰) جریبه ځمکه ترې پاتې ده. د دې مسئلې د حل لپاره هغه مرحلې چې د میراثي مسئلو د حل لپاره په کار وړل کېږي، په نظر کې نیول کېږي.

د مسئلې حل:

| | | | |
|---|---|---|---|
| **ورثه:** | مور | علاتي خور | اخیافي خور |
| **فروض:** | ۱/۶ | ۱/۲ | ۱/۶ |
| | ۱ | ۳ | ۱ |
| | سدس | نصف | سدس |

د ورثې ټولې برخې ۵=۱+۱+۳

د ورثې ټولې برخې چې د اصل مسئلې څخه لاس ته راغلې د اصل مسئلې څخه کمې دي، نو ذکر شوې مسئله ردیه ده د ورثې په ډله کې یو د زوجینو هم وجود نه لري، نو ترکه د برخو په پرتله چې ورثه یې د اصل مسئلې نه لري، په ورثه باندې

د فرض او رد په لاره وېشل کېږي او د ورثې ټولې برخې د مسئلې ردي اصل نیول کېږي او د تقسیم اساس ترکه ده، نو د هر وارث د برخې معلومولو لپاره د مړي د ترکې نه ترکه په ردي اصل (۵) تقسیموو او خارج قسمت د هر وارث په برخه کې ضربوو، د ضرب حاصل د ترکې نه د هر وارث برخه ده، نو د یوې برخې قیمت د (۶۰) جریبه ځمکې نه ردي اصل ضرب او مسئله له (۱۲) څخه نیول کېږي.

اصل مسئله: (۱۲)

د مور برخه: ۱۲=۱×۱۲ (۱۲) جریبه ځمکه

د علاتي (پلرنۍ خور) برخه ۳۶=۳×۱۲ (۳۶) جریبه ځمکه

د اخیافي (مورنۍ خور) برخه ۱۲=۱×۱۲ (۱۲) جریبه ځمکه

| وخت | فعالیتونه |
|---|---|
| ۵دقیقې | ښوونکی د لومړنیو موضوعاتو وروسته تېر شوی لوست په څو پوښتنو سره ارزوي، مثلاً:<br>۱ـ د متروکې د تقسیم طریقه په ورثه وو څرنګه ده؟<br>۲ـ د میراث په علم کې تخارج تعریف کړئ؟<br>**د لوست وړاندیز:**<br>ښوونکی د ځوابونو اورېدو وروسته د نوي لوست سرلیک (رد) په تخته لیکي او زده کوونکو ته دنده ورکوي چې لوست په چوپتیا سره ولولي او بیا نوی لوست په ساده توګه ورته شرح کوي او مثالونه په تخته حلوي. وروسته یې په څو زده کوونکو تکراروي.<br>وروسته زده کوونکي په څلورو ډلو وېشي او دوی ته د رد له مسئلو څخه یوه مسئله چې د ښوونکي په لارښود کتاب کې حل ده ورکوي، ترڅو په خپلو منځو کې یې حل کړي او په پای کې نتیجه د ټولګیوالو په مخ کې په تخته اعلانوي.<br>**د لوست لنډیز:**<br>د درسي کتاب له مخې ورته بیانوي او بیا زده کوونکي ارزوي او بالاخره کورنۍ دنده ورته سپاري، د مثال په توګه دا مسئله:<br>هر کله که د مېړه په ورثه کې حامله ښځه یې هم وي د هغه متروکه څنګه تقسیمېږي. |

لوست: درى څلوېښتم

## سرليک: جهاد

**وخت:** يو درسي ساعت

**مخ:** ۱۲۹

**موخې:** زده کوونکي بايد:

۱ـ د جهاد لغوي او اصطلاحي معنا وپېژني.

۲ـ د جهاد د مشروعيت دليل زده کړای شي.

۳ـ د جنګ او جهاد له شرطونو سره آشنا او نورو ته بيان کړی شي.

**لازمي پوهه:**

د اسلام د سپېڅلي دين له مخې حق جهاد د باطل په وړاندې او مبارزه د تکبر او زور په وړاندې او هلې ځلې د دې لپاره چې د انسان سلطه او قدرت پر انسان باندې له منځه ولاړ شي او خالص الٰهي حکومت تر قيامته پورې په ټوله نړۍ برقرار شي، ادامه لري.

د جهاد کلمه د جَهَدَ يجهد جهداً له باب څخه اخيستل شوې ده چې مصدر يې جُهد د جيم په ضمه سره دی او د جيم په فتحه هم راغلی. البته په ضمې سره يې معنا: دسعی کوشش او تحمل کول دی د حق په لار کې مبارزه کول او د حق دين لوري ته بلنه ورکول دي او د جيم په فتحې سره د وس او توان او همدارنګه د رنځ او ستونزې په معنا هم راغلی دی.

نو جهاد په لغت کې د آخري توان او وس په کار اچول دي، څو هدف ته پرې ورسېږي او ناوړتياوې دفع شي.

علماء وايي: جهاد په اسلام کې د انسان څخه د دفاع لپاره يو حرکت دی او د ده خپلواکي ده په ځمکه کې په هغو وسيلو او آلاتو سره چې د بشري پېښو ټول اړخونه په خپله احاطه کې راولي او په ټاکلو مرحلو کې رامنځ ته کېږي چې هره مرحله يې د خپلې زمانې سره سمې آلې لري، نو په ځمکه کې د ټولو انسانانو خپلواک کول څو د بندګانو له بندګۍ او غلامۍ څخه خلاص شي او د بې نيازه الله ﷻ بندګي ومني، دا د اسلامي جهاد انګېزه او آرمان دی.

علماء د جهاد د تعريف په هکله وايي: د اسلام تر ټولو وروستنی هدف په نړۍ کې د انسان د سلطې او برلاسۍ له منځه وړل برلاسي باندې او د يو الٰهي مطلق حکومت برقراري ده په ټول عالم باندې.

| وخت | فعاليتونه |
|---|---|
| ۵دقيقې | ښاغلی ښوونکی د لومړنيو مرحلو او موضوعاتو څخه وروسته د تېر لوست ارزونه کوي، مثلاً<br>۱ـ څوک د رد معنا ويلی شي؟<br>۲ـ رد په کومو ذوی الفروضو باندې صورت نيسي؟<br>د لوست وړانديز: ښوونکی د ځوابونو له اورېدو وروسته د نوي لوست سرليک (جهاد) په تخته ليکي او زده کوونکو ته امر کوي څو لوست په چوپتيا سره ولولي او دی په خپله بغلي سرليکونه په تخته ليکي.<br>او بيا هر يو د دوی د سوبې سره سم مفصل شرح کوي او بيا له يوه زده کوونکي څخه غواړي څو ټولګيوالو ته يې تکرار کړي. بيا زده کوونکو ته وخت ورکوي څو د جهاد د حکمت او مشروعيت په هکله په خپلو کې بحث او څېړنه وکړي او بيا د بحث او څېړنې نتيجه يو زده کوونکی بيانوي. بيا ښوونکی د لوست لنډيز بيانوي: يعني جهاد لغتاً او اصطلاحاً ورته تعريفوي او دا ورته واضح کوي چې د جهاد د مشروعيت دليل درې منابع لري: قرآنکريم، سنت او اجماع.<br>د جهاد په هکله د هجرت په دويم کال د دفاع اجازه ورکړ شوه او لومړني آيتونه چې په دې هکله نازل شول د حج سورت ۳۸ـ۴۱ آيتونه دي. بيا ښوونکی د درسي کتاب په پوښتنو سره زده کوونکي ارزوي او کورنۍ دنده ورسپاري څو د جهاد د ګټو په هکله يوه لس کرښيزه مقاله وليکي. |

لوست: څلور څلویښتم

## سرلیک: د جهاد لاس ته راوړنې

**مخ: ۱۳۲**

**وخت:** یو درسي ساعت

**موخې:** زده کوونکي باید:

۱ـ د جهاد هدفونه او حکمتونه وپېژني.

۲ـ د اسلام د پیل جنګونه د شلمې پېړۍ له جنګونو سره مقایسه کړای شي.

۳ـ د جهاد هدفونه نورو ته بیان کړای شي.

**لازمي پوهه:**

رسول اللهﷺ د خپلې پیغمبرۍ دیارلس کاله په مکه مکرمه کې تېر کړل، په داسې حال کې چې په دې موده کې د اسـلام د سپېڅلي مقدس دین په رسونه او تبلیغ بوخت و او د مشرکانو د ډول ډول رنځونو او کړاوونو سره مخ ؤ او صحابه یې هـم ورڅنې خلاص نه وو مشرکانو خلک د قرآن کریم او د سپېڅلي دین له بلنې څخه منع کول.

قدرمن صحابه د خپل دین د ساتنې لپاره د ناچارۍ له کبله حبشې ته په هجرت کولو مجبور شول، ځکه دوی د دښـمن د ناروا تېریو په وړاندې د دفاع وس نه درلود خو د الله جل جلاله اراده داسې تللې وه چې د یثرب (مدینې منورې) د اوس او خـزرج قبیلې به د اسلام د مقدس دین بلنه مني، نو همدا وجه وه چې رسول اللهﷺ ورسره بیعت وکړ، یعنې لکه څنګـه چـې دوی د ناخوالو په وړاندې د خپلو ځانونو او اولادونو څخه دفاع کوي، همدارنګه به یې د رسول اللهﷺ څخه هم کوي او کله چـې مکه والو په کلي توګه د پیغمبرﷺ د وژلو هوډ ونیوه، نو ده مبارک مدینې منورې ته د هجرت لاره ونیوله او وروسته قـرآن کریم په زیاتو ځایونو کې مسلمانانو ته د ډېرو لاملونو له کبله د جهاد اجازه ورکړه او دا اجازه دوو لاملونو ته راجع کېږي.

لومړی ـ دا چې د تېر یو په وخت کې د نفس نه د دفاع په وخت کې.

دویم ـ د اسلام مقدس دین ته د دعوت او بلنې په نیت په داسې حال کې چې د بلنې د لارې تلونکي پوهېږي چې مـؤمن د فتنو په لومه کې ګېر پاتې دي، په داسې توګه چې په ډول ډول عذابونو عذابېږي، څو د اسلامي عقیدې نه وګرځي یـا هغـه څوک چې د اسلام په دین کې د ننوتو اراده لري د اسلام دین ته د داخلېدو څخه منع شي او یا د اسلام بلونکي ته د تبلیـغ موقع ورنکړی شي دا هغه کړه وړه دي چې قرآن کریم د دوی سره د جنګ اجازه کړېده.

الله تعالی د حج په سورت کې چې د جهاد په هکله لومړی بیان یکې راغلی داسې فرمایي: ((أُذِنَ لِلَّذِينَ يُقَاتَلُونَ بِأَنَّهُمْ ظُلِمُـوا وَإِنَّ اللَّهَ عَلَى نَصْرِهِمْ لَقَدِيرٌ الَّذِينَ أُخْرِجُوا مِن دِيَارِهِمْ بِغَيْرِ حَقٍّ إِلاَّ أَن يَقُولُوا رَبُّنَا اللَّهُ وَلَوْلاَ دَفْعُ اللَّهِ النَّـاسَ بَعْـضَهُم بِـبَعْضٍ لَّهُدِّمَتْ صَوَامِعُ وَبِيَعٌ وَصَلَوَاتٌ وَمَسَاجِدُ يُذْكَرُ فِيهَـا اسْـمُ اللَّـهِ كَـثِيرًا وَلَيَنـصُرَنَّ اللَّـهُ مَـن يَنـصُرُهُ إِنَّ اللَّـهَ لَقَـوِيٌّ عَزِيزٌ))(الحج/۳۹ـ۴۰)

ژباړه: هغو کسانو ته اجازه ورکړل شوه چې د هغو په خلاف په جګړ لاس پورې کیږي ځکه هغوی مظلومان دي او الله پـه ریښتونې توګه د هغو د ملاتړ وس لري.

دا هغه کسان دي چې له خپلو کورونو څخه په ناحقه وايستل شول يوازې په دې جرم چې هغوی وايي زمـــوږ رب الله دی، که الله خلک يودبل په وسيله دفع نکړي نو ټول هغه ځايونه به ونړيږي چې د الله نوم پکې ډير ياديږي الله به هرومرو له هغــو کسانو سره مرسته وکړی چې (د الله د دين) مرسته کوي، الله ډير ځواکمن برلاسی دی.

د حج سورت په دې آيتونو کې دوه ډيرې مهمې نکتې شتون لري چې بايد هغه وپېژنو:

۱ــ دا چې د مسلح جهاد اساسي هدف دا دی چې د ظالمانو قوت او دبدبه وځپل شي، هغه کسان چې د حقې لارې مـــانع کېږي او د الله ﷻ بندګانو ته آزار او رنځ رسوي او بيا قدرت هغو کسانو ته وسپارل شي چې الله ﷻ پېژندونکي، الله والـــه او پرهيزګاره وي او د ښېګڼو په خپرولو او د بديو نه د مخنيوي په هکله هلې ځلې کوونکي وي.

۲ــ دا چې هغه ډله مسلمانان چې د جهاد او قرباني لپاره متې رانغاړې او په دې سپېڅلې لاره کې قدم پورته کوي بايد پـــه هغه کې روزل شوي او پالل شوي وي چې که د زيار او جهاد په نتيجه کې قدرت ته ورسېږي، نو دغه قدرت او دبدبه بايد د ټولنې په جوړولو او د ښېګڼو په رواجولو او د ناوړو چارو نه د مخنيوي په هکله وکاروي نه دا چې قدرت او حکومت د دنيا د راجلبولو او د عيش او عشرت وسيله وګرځوي.

قرآني آيتونه او قيمتي نبوي احاديث د الله ﷻ په لاره کې د جهاد او هلو ځلو د غوره والي او فضيلت په هکله دليـــل دی. د نورو عملونو (عبادتونو) په پرتله او د اسلام زياتره علماء د ذکر شوو نصوصو په نظر کې نيولو سره عقيده لري چې د الله ﷻ په لاره کې جهاد تر ټولو ډير غوره عمل دی چې په اسلامي ټولنه کې بايد ورباندې ټينګار وشي، متأسفانه چې جهاني استعمار او استکبار د الله ﷻ په لاره کې د جهاد ځلېدونکې څېره کم رنګه کړې ده او ډير پراخه هلې ځلې يې په لاره اچـــولې دي، څو د الله په لاره کې جهاد د خلکو په ذهنونو کې د ترور او خشونت مصدر وپېژني.

**د جهاد غوره والی:**

لکه څنګه چې وويل شوه د قرآن کريم صفحې د الله ﷻ په لار کې د جهاد نه ډکې او ښکلې شوې دي، په دې برخه کـــې په عامه اصطلاح موتی د خروار بېلګه ده د جهاد څو فضيلتونه بيانوو. الله تعالی په قرآن کريم کې فرمايي: ((يَا أَيُّهَـــا الَّـــذِينَ آمَنُوا هَلْ أَدُلُّكُمْ عَلَى تِجَارَةٍ تُنجِيكُم مِّنْ عَذَابٍ أَلِيمٍ تُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ وَتُجَاهِدُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ بِأَمْوَالِكُمْ وَأَنفُسِكُمْ ذَلِكُـــمْ خَيْرٌ لَّكُمْ إِن كُنتُمْ تَعْلَمُونَ))(الصف/۱۰ــ۱۱)

ژباړه: ای مؤمنانو ايا تاسې ته د داسې سوداګرۍ لارښوونه وکړم چې تاسې د (دوزخ له) دردناک عذاب څخه وژغوري، پر الله او دهغه پر رسول ايمان راوړئ او د الله په لار کې په خپلو مالونو او ځانونو سره جهاد وکړئ دا (کار) تاسې لره غـــوره دی که پوهيږئ.

په غور او پاملرنې سره په دې آيت کې مومو چې د جهاد غوره والی او فضيلت په څه اندازه لويه درجه لري. په دې ذکـــر شوي آيت کې يې جهاد د يو ډول تجارت سره تشبيه کړی چې په هغه کې مالي ګټې شتون لري، اما لـــه غـــور او مطـــالعې وروسته مومو چې نه يوازې په دې آيت کې بلکې ټولو هغو آيتونو کې چې د جهاد فضيلت او لويي ذکر شوې ده، نو په هغـــه کې کاميابي او لويي د مادياتو په لاس ته راوړنه او د حکومت په چارو تسلط او برلاسی بس والی نه دی شوی، بلکې د اعلی جنت او ښايسته آخرت ژمنه هم شوېده، لکه چې الله تعالی فرمايي: د الله په لار کې مال او ځان وښندئ او د هغه په بدله کې د دوزخ د شغله لرونکي اور څخه خلاصون حاصل کړئ. هغه آيت چې الله تعالی مجاهدين پرې ستايلي: ((إِنَّ اللَّـــهَ يُحِـــبُّ الَّذِينَ يُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِهِ صَفًّا كَأَنَّهُم بُنيَانٌ مَّرْصُوصٌ))(الصف/۴)

ژباړه: بیشکه الله هغه کسان خوښوي چې د هغه په لار کې په ټینګو لیکو کې داسې جنګیږي (چی ته به وایــې) دوی لکــه ټینګ دیوال دی.

کوم ټولی چې پرته د عوض او بدلې له انتظاره، پرته د مال او شتو او پانګې له هیلې، پرته له شخصي ګټو طرح کولو، بلکې یوازې او یوازې د اسلام د حاکمیت او د الهي رضا او د خپلې عقیدې د حریم د پاکوالي لپاره او د دیني ارزښتونو او د فتنې او فساد او د ظلم د ماتیو نړولو لپاره او د هغه په ځای عدل او انصاف قایمولو لپاره متې راونغاړي او په دې لاره کــې د دې هدفونو د پیاوړتیا په خاطر مال او ځان، تجارتي ګټې د اولادونو، مور، پلار او ورونو، خویندو او ټول ژوند او کــور کهــول قرباني کړي، نو د داسې ټولي سره هېڅوک برابري نشي کولای، یوازې همدوی د الله ﷻ د مینې او رضـــا مـــستحق دي او یوازې همدوی ته د کامیابۍ او برلاسي غېږه پرانستل کېدای شي.

همدا د الله ﷻ په لار کې د جهاد غوره والی دی چې په الله تعالی باندې له ایمانه وروسته له ټولو اسلامي ارزښــتونو څخــه لوړه درجه ورته حاصله ده، نو که په غور سره تر څېړنې لاندې ونیوه شي، معلومېږي چې په حقیقت کې همدا جهاد دی چې د ټولو اخلاقي فضیلتونو او مکارمو روح دی او د الله تعالی پیمغبرﷺ د مجاهدینو په هکله داسې فرمایي: ((وَعَنْ أبي هُرَيــرَة، رضي اللَّه عَنْه، قَال: قَالَ رسولُ اللَّهِ صَلّى اللهُ عَلَيْهِ وسَلَّم: « تَضَمَّنَ اللَّه لِمنْ خَرَجَ في سَبيلِه، لا يُخْرِجُهُ إلاَّ جِهَــادٌ في سَــبيلي، وإيمانٌ بي وَتَصْدِيقٌ برُسُلي فَهُوَ ضَامِنٌ أنْ أدْخِلَهُ الجَنَّة، أوْ أرْجِعَهُ إلى مَنْزِلِهِ الذي خَرَجَ مِنْهُ بما نَالَ مِنْ أجْر، أوْ غَنِيمَة، وَالَّذي نَفْسُ مُحَمَّدٍ بيَدِهِ ما مِنْ كَلْمٍ يُكلَم في سبيلِ اللَّهِ إلاَّ جاءَ يوْم القِيامةِ كَهَيْئَتِهِ يوْم كُلِم، لَوْنُهُ لَوْن دَم، وريحُهُ ريحُ مِسْك، والَّــذي نَفْــسُ مُحمَّدٍ بيدِهِ لَوْلا أنْ أَشُقَّ على المُسْلِمينَ ما قعَدْتُ خِلاف سرِيَّةٍ تَغْزُو في سَبيلِ اللَّه أَبَدا، ولكِنْ لا أجِدُ سعَة فأَحْمِلَهمْ ولا يجِــدُونَ سعَة، ويشُقُّ علَيْهِمْ أن يَتَخلفوا عنِّي، وَالذي نفْسُ مُحَمَّد بيدِه، لَودِدْتُ أن أغزوَ في سبِيلِ اللَّه، فَأُقْتَل، ثُمَّ أغْزو، فأُقتل، ثُمَّ أغزو، فَأُقتل))(الحدیث)

ژباړه: رسول الله ﷺ فرمایلي دي: الله داسې ژمنه کړې ده، د هغه چا لپاره چې د ده په لاره کې راووځي (او الله تعالی داســې فرمایلي دي) ((او دی یوازې زما په لاره کې جهاد او په ما ایمان او زما د پیغمبرانو تصدیق راایستلی وي، نو د ده لپــاره (الله تعالی فرمایي) زه ژمن یم چې جنت ته به یې داخلوم.

یا دا چې دی به د مزد یا غنیمت سره خپل کور ته راګرځوم او په هغه ذات قسم چې د محمد نفس د ده په لاس کــې دی هېڅ زخم نشته چې د الله ﷻ په لاره کې منځ ته راغلی وي، مګر دا چې د قیامت په ورځ به په همغه بڼه راځي چــې کومــه ورځ یې زخم خوړلی و چې د زخم د وینو رنګ به د وینو وي او بوی به یې د مشکو. او قسم په هغه ذات چې د محمــدﷺ روح د ده په لاس کې دی که په مسلمانانو کړاو او سختي نه راتلی، نو هېڅکله به په یوه غزا کې هم د الله ﷻ په لار کې لــه جهاده نه شاته کېدم، خو دا وس نلرم چې دوی د ځان سره بوځم او دوی هم دا وس او توان نلــري او دا پــه دوی ډېــره ستونزمنه تمامېږي چې زما څخه وروسته پاتې شي او قسم په هغه ذات چې د محمد روح د ده په لاس کــې دی، دا خوښــم چې د الله ﷻ په لار کې جهاد وکړم او ووژل شم او بیا جهاد وکړم او ووژل شم او بیا جهاد وکړم او ووژل شم.

| وخت | فعالیتونه |
|---|---|
| ۵دقیقې | ښاغلی ښوونکی د لومړنیو موضوعاتو وروسته د تېر شوي لوست په هکله زده کوونکي داسې ارزوي:<br>۱_ د جهاد لغوي او اصطلاحي معنا څوک ویلای شي؟<br>۲_ د جهاد د مشروعیت دلیل څوک ویلای شي؟<br>۳_ جهاد څه وخت فرض شوی دی؟<br>ښاغلی ښوونکی د ځوابونو له اورېدو وروسته د نوي لوست سرلیک (د جهاد لاس ته راوړنې) په تخته لیکي او زده کوونکو ته امر کوي چې لوست په چوپتیا سره ولولي او دی په عین مهال کې د لوست بغلي سرلیکونه پــه تخته لیکي او بیا یې شرح کوي.<br>ښوونکی بیا زده کوونکي په څو ډلو وېشي، بیا دنده ورکوي څو د اسلام د لومړنیو جنګونو په هکله یو د بـــل سره بحث او خبرې وکړي او هغه د شلمې پېړۍ له جنګونو سره مقایسه کړي.<br>بیا د یوه زده کوونکي څخه غواړي څو د بحث نتیجه ټولګیوالو ته بیان کړي.<br>**د لوست لنډیز:**<br>جنګ په اسلام کې د مقدساتو څخه د دفاع په هدف او د ظلم د ټغر ټولېدلو او ریښو ایستلو لپاره رامــنځ تــه کېږي او جهاد لاندې هدفونه لري:<br>۱_ د دیني سپېڅلتیاوو او مسلمانانو د حقوقو څخه دفاع.<br>۲_ د بېوزلو خپلواکي.<br>۳_ د دعوت او بلنې آزادي.<br>**ارزونه:**<br>ښوونکی د خپل ډاډ او اطمینان په خاطر د درسي کتاب له پوښتنو څخه زده کوونکي ارزوي.<br>**کورنۍ دنده:**<br>ښوونکی زده کوونکو ته کورنۍ دنده ورکوي. |

لوست: پنځه څلویښتم

## سرلیک: په جهاد کې کوم کسان مکلف دي

**مخ:** ۱۳۵

**وخت:** یو درسي ساعت

**موخې:** زده کوونکي باید:

۱ـ وپوهېږي چې کوم کسان په جهاد مکلف دي؟

۲ـ د ناروا جنګونو په معنا او مفهوم وپوهېږي او خپل نظریات ولیکلی شي.

۳ـ په دې مهمه نکته هم وپوهېږي چې کوم کسان د عصبیت او قومي او نژادي احساساتو په خاطر جنګېږي د هغوی برخلیک به څرنګه وي.

**لازمي پوهه:**

لکه څنګه چې الله تعالی په قرآن کریم کې انسانانو ته د زغم او حوصلې لاربښوونه کړېده، همدارنګه په هغه مهال چې د اسلام روښانه دین په خطر کې وي او د دښمنانو یرغلونه د اسلام د نړولو لپاره چمتو والی ښیي، څو په ټولنه بل نظام حاکم او برلاسی کړي، نو په دې صورت کې د زغم او حوصلې نه کار نه اخلي، بلکې اسلام په پوره شدت او سختۍ حکم کوي چې که چېرې څوک ستاسو انساني حقوق تر پښو لاندې کوي، پر تاسو ظلم او تېری کوي او تاسو د خپلو شتو او ملکیتونو څخه محروموي او ستاسو څخه د ایمان او ضمیر خپلواکي سلبوي او تاسو د خپل دین د معیارونو سره سم ژوندانه ته نه پرېږدي، ستاسو د ټولنیز نظام ستنې نړوي او تاسو ته له دې کبله رنځ او آزار درکوي چې د اسلام د روښانه دین پیروي مو غوره کړې ده، نو د همداسې قوت په وړاندې هېڅکله ښوزلي او سستي مه ښیئ، خپل قوت او وس د داسې ظلمونو په دفع کولو کې ولګوئ. الله تعالی آیتونو کې فرمایي: ((وَقَاتِلُواْ فِي سَبِيلِ اللّهِ الَّذِينَ يُقَاتِلُونَكُمْ وَلاَ تَعْتَدُواْ إِنَّ اللّهَ لاَ يُحِبِّ الْمُعْتَدِينَ وَاقْتُلُوهُمْ حَيْثُ ثَقِفْتُمُوهُمْ وَأَخْرِجُوهُم مِّنْ حَيْثُ أَخْرَجُوكُمْ وَالْفِتْنَةُ أَشَدُّ مِنَ الْقَتْلِ وَلاَ تُقَاتِلُوهُمْ عِندَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ حَتَّى يُقَاتِلُوكُمْ فِيهِ فَإِن قَاتَلُوكُمْ فَاقْتُلُوهُمْ كَذَلِكَ جَزَاء الْكَافِرِينَ فَإِنِ انتَهَوْاْ فَإِنَّ اللّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ وَقَاتِلُوهُمْ حَتَّى لاَ تَكُونَ فِتْنَةٌ وَيَكُونَ الدِّينُ لِلّهِ فَإِنِ انتَهَواْ فَلاَ عُدْوَانَ إِلاَّ عَلَى الظَّالِمِينَ الشَّهْرُ الْحَرَامُ بِالشَّهْرِ الْحَرَامِ وَالْحُرُمَاتُ قِصَاصٌ فَمَنِ اعْتَدَى عَلَيْكُمْ فَاعْتَدُواْ عَلَيْهِ بِمِثْلِ مَا اعْتَدَى عَلَيْكُمْ وَاتَّقُواْ اللّهَ وَاعْلَمُواْ أَنَّ اللّهَ مَعَ الْمُتَّقِينَ)).

ژباړه: او د الله په لاره کې د هغو کسانو سره جګړه وکړئ چې له تاسې سره جګړه کوي خوله حد څخه مه تیریږئ بیشکه چې الله هغه کسان نه خوښوي چې له حده اوړي. او په هر ځای کې چې مشرکان ومومی ویې وژنی او له هغه ځایه بې وباسی چې تاسې یې ترې ایستلي یاست او فتنه (شرک) له وژلو څخه (هم) ډېره سخته ګناه ده، او د دوی سره د مسجدالحرام په څنګ کې جګړه مه کوئ ترهغې چې دوی له تاسې سره هلته جګړه وکړي نو که دوی له تاسې سره (په مسجد الحرام) کې جګړه وکړه تاسې هم دوی (هلته) ووژنی د کافرانو سزا هم داده. نوکه دوی (له تیري څخه) ډډه وکړه نو په رښتیا چې الله ښه ښښونکی لورونکی دی. او له دوی سره ترهغې جګړه وکړئ چې فتنه (شرک) پاتې نشي او د الله دین (حکم) یوازې د الله شي خوکه دوی له تیري لاس پرسرشي نو تیری له تیري کوونکو پرته پربل چا نه دی رواو. د حرامی میاشتې بدل هماغه حرامه میاشت ده او د ټولو حرمتونو مراعاتُ یوشان برابر وي نوکله چې څوک پرتاسې تیری وکړي تاسې هم پرهغه همغسې تیری وکړئ چې پرتاسې یی کړی دي او له الله څخه وویریږئ او پوه شی چې بیشکه الله له متقیانو سره دی.

هو د دین او د اسلامي خاورو نه دفاع په هغه کچه مهمه او ضروري ده چې هر کله کوم قدرت او طاقت د اسلام د بېوزلی یا د اسلامي نظام د نړولو او نابودولو لپاره یرغل وکړي، نو پر ټولو مسلمانانو فرض عین دی چې ټول خپل کارونه پرېږدي او د دوی د دسیسو او فتنو د دفع کولو لپاره راووځي او چې چې اسلامي نظام او کړنلاره له داسې خطرونو څخه ونه ژغوري هېڅکله آرام او هوسایي ونه پلټي، لکه څنگه چې په ټولو فقهي کتابونو کې دا دستور موجود دی، یعنې هر کله که جنگي کافران په اسلامي هېواد یرغل او حمله راوړي، نو په هر مسلمان وګړي دفاع په داسې غوڅه توګه لازمه ده، لکه لمونځ او روژه. د فقهې په مشهور کتاب ((بدائع الصنائع)) کې راغلي چې: ((فاما اذا عم النفیر بان هجم العدو علی بلد فهو فرض عین یفترض علی کل واحد من احاد المسلمین ممن هو قادر علیه لقوله سبحانه و تعالی «انفروا خفافاً و ثقالاً» قیل نزلت فی النفیر.

و قوله سبحانه و تعالی: ما کان لاهل المدینة و من حولهم من الاعراب ان یتخلفوا عن رسول الله ولایرغبوا بانفسهم عن نفسه...))

کله چې د جهاد عمومي اعلان وشي او دښمن په یوه اسلامي هېواد یرغل راوړي، نو په دې صورت کې جهاد په هر مسلمان وګړي نر او ښځې چې د جهاد وس او توان لري، فرض عین ګرځي. د دې مبارک آیت په بنا چې الله فرمايي: ((ووځئ د جهاد لپاره سپک او درانه)) ویل شوي دي چې دا آیت د نفیر په هکله نازل شوی او بله د الله وینا ده چې فرمايي: ((لایقه او وړ نده د مدینې منورې اوسېدونکو او د هغه د چاپېریال اوسېدونکو صحرایانو ته چې په غزوه کې له رسول اللهﷺ څخه وروسته پاتې شي او نه دا چې خپلو نفسونو ته د رسول اللهﷺ د نفس په پرتله زیاته هڅونه او پاملرنه وکړي.

او دا چې د نفیر عام وجوبي حکم پر ټولو مسلمانانو باندې ثابت دی، ځکه د ځینو مسلمانانو ګډون په عام نفیر کې هدف لاس ته نشي راوړی، نو جهاد په داسې حالت کې فرض عین ګرځي، لکه لمونځ او روژه نو په داسې مهال غلام پرته د بادار له اجازې او ښځه پرته د مېړه له اجازې په جهاد کې ګډون کړای شي، ځکه په فرض عین عبادتونو کې بادار او مېړه په غلام او ښځه د خدمت حق نلري، لکه لمونځ او روژه، همدارنګه اولاد کولای شي چې پرته د مور او پلار له اجازې د جهاد صفونو ته ورودانګي، ځکه د مور او پلار حق ساقطېږي، لکه څنګه چې په نورو فرض عین عبادتونو کې ساقط دی.

البته دا فرض عین والی یوازې تر مذهبي، ملي او قومي انګېزو پورې موقوف نه دی، بلکې بايد د عقیدې او اسلامي ارزښتونو د دفاع لپاره او د اسلام په حریم باندې د تجاوز له کبله چمتووالی وښيي. د هر ظالمانه یرغل او لوټمار په وړاندې چې پر اسلامي حکومت باندې صورت نیسي دفاع په عین قاطعیت او شدت فرض عین ده، ځکه یرغل او حمله پر اسلامي حکومت باندې په حقیقت کې په عین اسلام باندې یرغل دی. که هر څو د دښمن هدف د اسلام له منځه وړل نه وي، بلکې یوازې د مسلمانانو د سیاسي قدرت نړول وي. اما یوه پوښتنه داسې مطرح کېږي چې ایا کله په یوه اسلامي هېواد او یا د مسلمانانو په یوه منطقه د اسلام دښمنان یرغل کوي ایا د ټول جهان په مسلمانانو جهاد فرض عین ګرځي او یا د همغه هېواد یا منطقې په خلکو؟ ځواب دا دی چې کله د جهاد عمومي اعلان وشي، نو یوازې په هغو کسانو جهاد فرض عین ګرځي چې همله دښمن ته نږدې او په لرې کسانو فرض کفایي ګڼل کېږي، اما په هغه صورت کې که انساني قوت ته ضرورت پیدا شو او مسلمانانو د دښمن د یرغل توان نه درلود بیا په هغو مسلمانانو جهاد فرض عین کېږي چې دې هېواد یا منطقې ته نږدې وي، بیا په هغو خلکو فرض عین ګرځي چې همدې دویمې ډلې ته نږدې دي.

| وخت | فعالیتونه |
| --- | --- |
| ۵دقیقې | ښاغلی ښوونکی د لومړنیو مراحلو څخه وروسته د تېر شوي لوست په هکله زده کوونکي ارزوي، مثلاً:<br>۱ــ د جهاد ځینې هدفونه او حکمتونه څوک ویلای شي؟<br>۲ــ جهاد په کوم وخت کې فرض عین او په کوم وخت کې فرض کفایي ګڼل کېږي؟<br>۳ــ آیا د مذهبي، ملي او قومي انګېزو په صورت کې جهاد فرض کېدای شي؟<br>ښوونکی د ځوابونو له اورېدو وروسته د نوي لوست سرلیک «کوم کسان په جهاد مکلف دي» په تخته لیکي او زده کوونکو ته امر کوي څو لوست په چوپتیا سره ولولي او دی په خپله د لوست بغلي سرلیکونه لیکي او بیا هر سرلیک شرح کوي.<br>بیا د لوست خلاصه بیانوي او وایي چې کوم کسان عملاً په جنګ کې راښکېل دي، د هغو وژل روا دي او کوم چې د جنګ نه ګوښه دي، لکه ښځې، ماشومان، بوډاګان، مریض او معیوب یا کوم کسان چې په عبادت خانو کې په خپل عبادت لګیا دي، د هغو وژل جواز نلري.<br>جنګ په اسلام کې یوازې د الله ﷻ په لاره کې دی، نه د خواهشاتو، مقام او دبدبې یا په نورو د برلاسي یا د خاورې د پراختیا لپاره.<br>په اسلام کې جنګ د قومیت او نژاد لپاره حرام دی.<br>په پای کې ښوونکی زده کوونکي د درسي کتاب په ارزونې سره ارزوي او کورنۍ دنده ورسپاري، څو په ټولنه کې د عصبیت او دهغه د ناوړو پایلو په باره کې یوه مقاله ولیکي او په راتلونکي ساعت کې یې له ځانونو سره راوړي. |

**لوست: شپږ څلويښتم**

## سرليک: د اسلام له نظره د جهاد ډولونه

**مخ:** ۱۳۸

**وخت:** يو درسي ساعت

**موخې:** زده کوونکي بايد:

۱ــ د جهاد ډولونه د اسلام له نظره وپېژني.

۲ــ د جهاد په معنا او مفهوم وپوهېږي.

۳ــ د جهاد سياسي هدف وپېژني او نورو ته يې بيان کړی شي.

**لازمي پوهه:**

لکه څنګه چې دالهي لارښوونو او نبوي احاديثو څخه معلومېږي دوه ډوله جهاد شتون لري: جهاد اکبر او جهاد اصــغر، الله تعالی په قرآن کريم کې فرمايي: ((وَجَاهِدُوا فِي اللَّهِ حَقَّ جِهَادِهِ))(الحج/۷۸) يعنې د الله په لاره کې جهاد وکــړئ او حــق د جهاديې اداء کړئ. دلته زياتره مفسرينو جهاد ددښمن په وړاندې د ځانګړې مسلحانه مبارزې په معنا نه دی اخيستی، بلکــې لکه څنګه چې د جهاد له لغوي مفهوم نه استفاده کېږي د الله په لاره کې د هر ډول هلو ځلو او د نيکيو او ښېګڼو په ترســره کولو او د ناوړو کړو وړو او د نفس د بديو او ناروا غوښتنو په وړاندې مبارزه جهاد اکبر او د ظالمو او کافرو دښمنانو پــه وړاندې مبارزې ته جهاد اصغر وايي.

الله تعالی خپل پيغمبرﷺ ته فرمايي: ((فَلَا تُطِعِ الْكَافِرِينَ)) (الفرقان/۵۲) په هېڅ توګه د کافرانو پېروي مه کوه يعنــې د دوی دانحرافاتو او کړيو په وړاندې د سازش او جوړښت لاره مه خپلوه، ځکه دا کار د دعوت او بلنې په خپرولو کې ډېــر لــوی خطرونه رامنځ ته کوي. د دوی اصلاح کوه او خپل قدمونه ثابت ساته او هېڅ کله د دوی غوښتنو او هوسونو ته تسليم نــه شی.

او دويم قرآني امر دا دی: ((وَجَاهِدْهُمْ بِهِ جِهَادًا كَبِيرًا))(الفرقان/۵۲) د هغوی سره لوی جهاد کوه. يعنې داسې لوی جهــاد چې د خلکو د روح او فکر ټول اړخونه راونيسي او مادي او معنوي خواوو ته شامل شي پرته له شکه د جهاد نه هدف دلتــه عقيدتي، فکري، فرهنګي او تبليغاتي جهاد مراد دی، نه مسلحانه جهاد. علامه طبري هم په مجمع البيان کې وايــي دا آيــت دليل دی چې د ګمراهانو او د حق د دښمنانو په وړاندې ډېر لوی جهاد فکري او تبليغاتي جهاد دی او د پيغمبرﷺ مــشهور حديث: ((رَجَعْنَا مِنَ الْجِهَادِ الْاَصْغَرِ اِلَى الْجِهَادِ الْاَكْبَرِ)) همدې جهاد ته اشاره ده، يعنې موږ له وړوکي جهاد نه لوی جهاد تــه راوګرځېدو.

دا تعبير د قرآن کريم لوی مقام او دبدبه هم را په ګوته کوي، ځکه قرآن کريم د لوی جهاد د ثبوت لپاره داسې وســيله او پرې کوونکې سلاح ده چې د بيان او استدلال بيان او ژوره اغېزه او جاذبيت يې د انسانانو له تصور او قدرت څخه لوړ دی.

وړوکی جهاد هم په اسلام کې ډېر ډولونه لري: ابتدايي جهاد، دفاعي جهاد، د شرک او بت لمانځنې او فتنــو د اور مــړه کولو لپاره جهاد.

الله تعالی فرمايي: ((فَإِذا لَقِيتُمُ الَّذِينَ كَفَرُوا...))(محمد/۴)

ژباړه: کله چې د کافرانو سره مخامخ شی.

او فرمايي: کله چې د جنګ په ډګر کې د کافرانو سره مخامخ کېږئ، نو په ټول توان او وس له هغوی سره وجنګېــږئ او غاړې يې ورووهئ، يعنې له پښو يې وغورځوئ، اما هر کله چې غاړه وهل د وژنې روښانه مصداق دی، نو په هغه باندې تکيه شوېده او دلته مراد ورځنې جنګ دی، نه مطلق د کافر سره مخامخ کېدل.

او دا طبیعي خبره ده چې کله انسان د خپل دښمن سره مخ کېږي، نو په هغه سخته حمله کوي ورنه دی په خپله له منځــه ځي او دا شدیدې حملې تر هغه دوام مومي څو دښمن له پښنو نه وي لوېدلی او کله چې د پښنو ولوید بیا یې بندیانول په کـــار دي، نه وژنه.

او دا چې د اسلام او کفر جنګ کله ختمېږي؟ دې پوښتنې ته مفسرینو مختلف ځوابونه ورکړي دي، په دې هکله عبـــدالله ابن عباس رضي الله عنه وایي دا تر هغه پورې دی چې د بتانو عبادت د نړۍ له صفحې ورک شي او د شرک او بت لمانځنې تغر تــول شي. ځینو نورو ویلي د اسلام او کفر جنګ تر هغې دوام مومي څو مسلمانان په دجال برلاسي شي، لکه چې نبـــوي حـــدیث دی: ((الجهاد ماض منذ بعثنی الله الی ان یقاتل خر امتي الدجال)) (مسندابي یعلی) یعنې جهاد جاری دی د هغه وخت نه چې الله زه پیغمبر کړی یم، تر دې چې زما وروستنی امتي د دجال سره جنګ وکړي.

چې چې دجالان د ځمکې پر مخ ژوند کوي د حق او باطل مبارزه او جهاد روان دی. په حقیقت کې اسلام د کفـــر ســـره دوه ډوله جهاد لري: یو پرې کوونکي جنګونه دي لکه پیغمبر ﷺ چې د کافرانو سره درلوده چې د هر جنګ نه وروســـته بـــه توري په تیکو کې ایښودل کېدې او بل دوامدار جهاد دی، د شرک، کفر، ظلم او فساد په وړاندې او دا تر هغه دوام مـــومي څو په نړۍ کې د الهي عدل حکومت خور شي او یوازې اسلام حاکم واوسي.

| وخت | فعالیتونه |
|---|---|
| ۵دقیقې | ښاغلی ښوونکی د لومړنیو مراحلو وروسته تېر شوی لوست ارزوي، مثلاً:<br>۱_ څوک ویلای شي چې په جهاد کوم خلک مکلف دي؟<br>۲_ د جنګ په حالت کې د کومو کسانو وژنه روا نده؟<br>۳_ کوم ډول جنګونه حرام دي؟<br>ښوونکی د ځوابونو له ا ورېدو وروسته د نوي لوست سرلیک ((جهاد د اسلام له نظره)) په تخته لیکي او یـــوه زده کوونکي ته وایي چې لوست د کتاب له مخې ولولي، بیا لوست شرح کوي. وروسته زده کوونکي پـــه دوه ډلو وېشي او لارښوونه ورته کوي، څو د لوست په هکله په خپلو کې بحث او خبرې وکړي او بیا یې نتیجـــه اعلان کړي.<br>**د لوست لنډیز:**<br>جهاد په آخري اندازه هلې ځلې او قوت په کار اچول دي او د اسلام له نظره په څو ډوله دی:<br>۱_ مالي جهاد<br>۲_ دعوتي جهاد<br>۳_ تعلیمي جهاد<br>۴_ سیاسي جهاد<br>۵_ مسلحانه جهاد<br>په پای کې ښوونکی د خپل ډاډ او اطمینیان په خاطر د درسي کتاب له ارزونې څخه زده کـــوونکي ارزوي او بالاخره کورنۍ دنده ورکوي. |

**لوست: اووه څلويښتم**

# سرليک: صلح او احکام يې

**مخ: ۱۴۲**

**وخت:** يو درسي ساعت

**موخې:** زده کوونکي بايد:

۱ـ صلح او احکام يې وپيژني.

۲ـ د صلح د ګټو په باره کې بحث وکړای شي.

۳ـ د لوست ګټې په ټولنه کې تطبيق کړای شي.

**لازمي پوهه:**

صلح عربي کلمه اسم مصدر دی او د انسانانو ترمنځ په يوه سالمه، همغږې، آرامه او هوسا فضا کې د ژوندانه حاصـــل دی. مفهوم يې د يوې کورنۍ د اړيکو ترمنځ او د يوه دين د پيروانو او د بين المللي او مختلفو اديانو د پيروانو ترمنځ د تطبيق وړ دی.

د اسلام سپيڅلی دين صلحې ته په ټولو ذکر شوو امورو کې ځانګړې ارزښت ورکوي او په قرآن کريم کې په مختلفو وجو په هغې ټينګار شوی دی او مسلمانان يې صلحې ته رابللي دي. د صلحې ضد فساد دی، لکه چې ويل کېږي، يو شـــی هغـــه وخت صالح ګرځي چې فساد ورځنې لرې شي. مثلاً کله چې مرض له مريضه لرې شي، مريض روغتيا مومي او يا يو تن هغـــه وخت صالح ګرځي چې ناوړه اخلاق ورځنې لرې شي. او د صلحې په اصطلاحي معنا کې علماءمختلفې ويناوې لـــري او د اختلاف سبب دا دی چې صلح ډېر مصداقونه او مختلف حالتونه لري، لکه د مېړه او ښځې ترمنځ صلح، په معـــاملاتو کـــې صلح، په جنګ کې د لګيا خلکو ترمنځ صلح او نورو حالتونو کې صلح.

په پايله کې صلح د اوربند او د دوو خواوو ترمنځ د اختلافاتو او جګړو له منځه وړل دي. هغه هم د شرطونو په رڼـــا کـــې چې د صلحې د شرطونو په نامه يادېږي.

يا په بله وينا صلح د موافقت نامې په معنا ده چې جنګ او جګړې ته د پای نقطه ږدي. برابره ده چې لفظي جنګ وي (سوړ جنګ) او يا مسلحانه جنګ وي (تود جنګ) دا د صلح لپاره يو جامع تعريف دی چې د صلح ټولو ډولونو ته شاملېږي، لکـــه د معاملاتو صلح، کورنۍ صلح، د جنګ صلح برابره ده د مسلمانانو او کافرانو ترمنځ صلح وي او يا د مـــسلمانو ډلـــو او مشرانو ترمنځ وي.

د اسلام مقدس شريعت د صلحې ټول ډولونه چې جګړو او جنګونو ختمېدو ته منجر کېږي روا ګڼي، په داسې شرط ســـره چې هغه صلح حلال حرام او حرام حلال ونه ګرځوي او د صلحې په ترڅ کې عدل او انصاف ته پاملرنه او د دوامداره مثبتو اړيکو ساتل چې دښمن له منځه يوسي ضروري ده.

د اسلام د سپيڅلي دين له مخې د اسلامي امت ترمنځ د صلح عملي کول ډېره زياته ارزښتناکه ده او کله چې د دوو وګړو يا دوو ډلو يا دوو ملتونو ترمنځ دعوې او جنجال وي، نو د دوی ترمنځ د صلحې په راوستلو کې دروغ هـــم روا دي، لکـــه پيغمبرﷺ فرمايي: ((عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، أَنَّهُ قَالَ: أَخْبَرَنِي حُمَيْدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أُمِّهِ أُمِّ كُلْثُومٍ بِنْتِ عُقْبَةَ بْنِ أَبِي مُعَيْطٍ، أَخْبَرَتْـــهُ أَنَّهَا سَمِعَتْ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ يَقُولُ: " لَيْسَ الْكَذَّابُ الَّذِي يُصْلِحُ بَيْنَ النَّاسِ فَيَقُولُ خَيْرًا أَوْ يَنْمِي خَيْرًا " وَلَمْ أَسْمَعْهُ يُرَخِّصُ فِي شَيْءٍ مِمَّا يَقُولُ النَّاسُ كَذِبًا إِلَّا ثَلَاثٍ: الْحَرْبِ، وَالْإِصْلَاحِ بَيْنَ النَّاسِ، وَحَدِيثِ الرَّجُلِ امْرَأَتَهُ))

ژباړه: د حضرت ابن شهاب څخه روايت دی، وايي: ما ته حميد بن عبدالرحمٰن د خپلې مور نه خبر راکړ، يعنې د ام کلثوم بنت عقبه ابن ابي معيط نه چې د رسول اللهﷺ څخه مې واورېده چې فرمايل يې: ((دروغجن نه دی هغه څوک چې د خلکو ترمنځ اصلاح کوي او په خپلو دروغو سره خلکو ته ګټه او ښېګڼه رسوي او يا ګټوره او نېکه خبره کوي او راوي وايي چې ما د نبي کريمﷺ څخه نه دي اورېدلي چې څه خلک دروغ ګڼي او ده اجازه ورکړې وي، مګر په درېو ځايونو کې: په جنګ کې د خلکو ترمنځ په جنګ کې يعنی صلح راوستل او کومه خبره چې مېړه يې خپلې مېرمنې ته کوي.

د خلکو ترمنځ صلح يو الهي امر دی، لکه چې ا لله تعالى په قرآن کريم کې فرمايي: ((فَاتَّقُواْ اللّـهَ وَأَصْلِحُواْ ذَاتَ بِيْنِكُمْ وَأَطِيعُواْ اللّهَ وَرَسُولَهُ إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ)) (الانفال/١)

ژباړه: نو له الله څخه ووېرېږئ او خپل منځي اړيکې سمې کړئ او د الله اود هغه د رسول پيروي وکړئ.

او د احنافو په مذهب صلح يو رکن لري چې هغه د ايجاب او قبول صيغه ده چې د دوی په رضايت دلالت کوي. اما د امام مالک، شافعي او امام احمد حنبل رحمهم الله په نزد صلح درې رکنونه لري: د ايجاب او قبول صيغه، عاقدين (تړون کوونکي) او د صلح محل چې مصالح به او مصالح عليه دي چې هر يو ځانګړي شرطونه لري.

**د اسلام له نظره د صلح ارزښت:**

د اسلام په ټولنيز نظام کې صلح د خلکو ترمنځ ډېر لوی مقام او غوره والی لري، آن تر دې چې رسول اللهﷺ صلح د ټولې شپې له نفلي عبادت او نفلي روژې څخه غوره ګڼلې ده، لکه چې په يوه حديث کې راځي: ((عَنْ أَبِى الدَّرْدَاءِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِﷺ «أَلاَ أُخْبِرُكُمْ بِأَفْضَلَ مِنْ دَرَجَةِ الصِّيَامِ وَالصَّلاَةِ وَالصَّدَقَةِ». قَالُوا بَلَى. قَالَ «إِصْلاَحُ ذَاتِ الْبَيْنِ وَفَسَادُ ذَاتِ الْبَيْنِ الْحَالِقَةُ))

ژباړه: له حضرت ابودرداءؓ څخه روايت دی، وايي چې رسول اللهﷺ وفرمايل: آيا تاسې ته په داسې عمل خبر درکړم چې د هغه ترسره کول د نفلي روژې، نفلي لمانځه او صدقاتو نه زيات ثواب ولري؟ صحابه کرامو وويل: بلې، ده مبارک وفرمايل: دا د خلکو ترمنځ صلح کول دي او د خلکو ترمنځ فساد پيدا کول هلاک کوونکی دی.

همدارنګه د ابوهريرهؓ څخه روايت دی، وايي رسول اللهﷺ وفرمايل: ((سمعت رسول اللهﷺ يقول: من اصلح بين اثنين استوجب ثواب شهيد))

ژباړه: له رسول اللهﷺ څخه مې واورېدل چې فرمايل يې: څوک چې د دوو خواوو ترمنځ صلح راولي د شهيد ثواب لاس ته راوړي.

همدارنګه د انسؓ څخه روايت دی: ((قال رسول اللهﷺ من اصلح بين اثنين اعطاه الله بکل کلمة عتق رقبة))

يعنې څوک چې د دوو خواوو ترمنځ صلح راولي، الله تعالى په هره خبره باندې د يوه غلام آزادولو بدله ورکوي.

**د خپلو ورونو ترمنځ صلح راولئ:**

الله فرمايي: ((إِنَّمَا الْمُؤْمِنُونَ إِخْوَةٌ فَأَصْلِحُوا بَيْنَ أَخَوَيْكُمْ وَاتَّقُوا اللَّهَ لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ)). يعنې په باوري توګه مؤمنان د يو او بل ورونه دي، نو د خپلو ورونو ترمنځ صلح او جوړښت راولئ او د اللهﷻ نه ووېرېږئ، چې په تاسې رحم وشي.

او کوم څه چې په دې وروروليـ مرتب کېږي، هغه د مسلمانانو ترمنځ مينه او محبت، صلح او يو د بل سره مرسته او په خپلو کې اتحاد او اتفاق دی او مخالفت او جنګ جګړه مستثنٰی حالتونه دي او کله چې منځ ته راشي، بايد هغه خپل اصل ته چې مينه، محبت، صلح او يو د بل سره مرسته، اتفاق او يووالی دی، وګرځول شي او د دې اصل د ټينګښت لپاره په نورو

مسلمانانو لازمه ده چې په جګړه کې ښکېل لوری په خپلو ځايو کښېنوي او د دوی ترمنځ صلح راولي او که صلحې ته نـــه راګرځي د تېري کوونکي لوري په ضد بايد وجنګېږي او هغوی صلحې ته مجبور کړي او د دې اصل غوښتنه دا ده چـــې د داسې جنګ تپيان او بنديان ونه وژل شي او کوم کسان چې د جنګ څخه په شنګ کېږي او اسلحه په ځمکه ږدي، هغو تـــه بايد عفوه وشي او تعقيب نشي. مالونه او شته يې غنيمت ونه ګڼل شي، ځکه د سرکشو مسلمانانو سره د جنګ هدف دا نـــه دی چې دوی نابود شي، بلکې هدف د مسلمانانو صف ته د دوی ګرځول دي او دوی د اسلام تر بېرغ لاندې راوستل دي.

| وخت | فعاليتونه |
|---|---|
| ۵دقيقې | ښاغلی ښوونکی د لومړنيو مرحلو څخه وروسته د تېر شوي لوست په هکله زده کوونکي ارزوي، مثلاً:<br>۱_ د الله ﷻ په لار کې جهاد په څو جبهو کې کېدای شي، نومونه يې واخلئ؟<br>۲_ د سياسي جهاد مفهوم څوک ويلای شي؟<br>وروسته ښوونکی د ځوابونو له اورېدو وروسته د نوي لوست سرليک ((صلح او احکام يې)) په تخته ليکي او يوه زده کوونکي ته امر کوي چې لوست د کتاب له مخې ولولي او نور زده کوونکي ورته غوږ کېـــږدي او دی پـــه خپله بغلي سرليکونه په تخته وليکي.<br>بيا زده کوونکي په څو ډلو وېشي او ورڅخه غواړي چې د صلح او پخلاينې په هکله يو د بل سره بحث وکـــړي او استازی يې د ټولګي مخې ته راځي او نتيجه يې بيانوي. |